


**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب د پراختیا او د
ښوونکو د روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست


# د ښوونکي لارښود
# د قرآن کریم زده کړه
# څلورم ټولګی




د ښوونکي لارښود د قرآن کریم زده کړه - څلورم ټولګی






د چاپ کال: ۱۳۹۶ هـ ش.




**د پوهنې وزارت**
د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د
روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د
تالیف لوی ریاست

# د ښوونکي کتاب

# د قرآن کریم زده کړې لارښود

## څلورم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹٦هـ . ش

**ليکوالان:**

- مايل آقا متقي
- شير علي (همت نيازي)

**علمي اومسلکي اډيټ:**

- محمد آصف کوچی

**دژبې اډيټ:**

- محمد سهراب ديدار
- محمد قاسم هيله من

**ديني، سياسي اوکلتوري کميټه:**

- مولوي عبدالوکيل د اسلامياتو د څانګې علمي او مسلکي غړی
- حبيب الله راحل دتعليمي نصاب دپراختيا په رياست کې دپوهنې وزارت سلاکار

**د څارنې کمېټه:**

- دکتور اسد الله محقق د تعليمي نصاب د پراختيا او د ښوونکو د روزنې معين
- دکتور شېرعلي ظريفي د تعليمي نصاب د پراختيا د پروژې رييس
- سرمؤلف عبدالظاهر ګلستاني د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تأليف لوی رييس

**کمپوز او ډيزاين:** محمد اشرف عزيزی

**د چاپ چارې سمون:** محمد کبير حقمل د پوهنې وزارت د خپرونو او اطلاعاتو رئيس.



## ملي سرود

دا وطن افغانستان دی　　　دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې　　　هر بچی یې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی　　　د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو　　　د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، ګوجر دي　　　پامیریان، نورستانیان

براهوي دي، قزلباش دي　　　هم ایماق، هم پشه یان

دا هیواد به تل ځلیږي　　　لکه لمر پر شنه آسمان

په سینه کې د آسیا به　　　لکه زړه وي جاویدان

**بسم الله الرحمن الرحیم**

**د پوهنې د وزیر پیغام**

دلوی خدایﷻ ډیر شکردی چې انسان یې په احسن تقویم کې پیدا او هغه ته یې د خبرو کولو توان ورکړ اود علم او فکر پر ګاڼه یې سمبال کړ. ډیر درود دې وي د اسلام پر ګران پیغمبر حضرت محمد مصطفیﷺ چې د انسانیت ستر ښوونکی دی او د رحمت، لارښوونې او روښنایۍ پیغام راوړونکی.

ښوونه او روزنه په هره ټولنه کې د بدلون او پراختیا بنسټ دی. د ښوونې او روزنې اصلي موخه د انسان د بالقوه ځواکونو فعالول او د هغه د پټو استعدادونو غوړول دي.

درسي کتاب د ښوونې اوروزنې په بهیر کې یو مهم رکن بلل کیږي چې له نوو علمي بدلونونو او پرمختګونو سره اوږه په اوږهدټولنې له اړتیاووسره سم تالیف کیږي. درسي کتابونه باید د منځپانګې له مخې خورا بډای وي چې وکړای شي د علومو له نوو لاسته راوړنو سره مل دیني اواخلاقي زده کړې د نوو میتودونو له لارې زده‌کوونکو ته ولیږدوي.

دغه کتاب چې اوس ستاسو په واک کې دی، د همدغو پورته ځانګړنو پر بنسټ چمتو او تالیف شوی دی. د پوهنې وزارت تل زیار باسي چې په هیواد کې تعلیمي نصاب او درسي کتابونه د اسلامي ښوونې او روزنې او د ملي هویت د ساتلو پر بنسټ جوړ او له علمي معیارونو، نوو روزنیزو میتودونو او د نړۍ له علمي پرمختګونو سره سم چمتو کړي. د زده‌کوونکو استعدادونه په ټولو اخلاقي او علمي خواوو کې وغوړیږي او په هغوی کې د تفکر او نوښت توان او د پلټنې حس پیاوړی کړي. د خبرو اترو او پیرزوینې د فرهنګ دودول، د هیواد پالنې او د مینې او محبت د حس پیاوړی کول، ښښنه او پیوستون د پوهنې د وزارت نورې غوښتنې دي چې ښایي د لوست په کتابونو کې ورته پام وشي.

درسي کتابونه د ښه او مسلکي ښوونکي له درلودو پرته نشي کولای ټاکل شوي موخې ترلاسه کړي. ښوونکی د ښوونې او روزنې یو مهم جزء او د ښوونې او روزنې د پروګرامونو پلي کوونکی دی. د هیواد له ژمنو او زړه سواندو ښوونکو څخه، چې د تورتم او ناپوهۍ په وړاندې یې هڅه او هاند خپله دنده ګرځولې، دوستانه هیله لرم د تعلیمي نصاب په دقیق او مخلصانه تطبیق کې د هیواد ماشومان، نجونې او تنکي ځوانان د پوهې، اخلاقو او معنویت لوړو څوکو ته ورسوي.

د هیواد د زده کړې د نظام بری د خلکو له جدي مرستو پرته امکان نه لري. له دې امله له ټولو قشرونو او د ملت له شریفو خلکو، په تیره بیا له کورنیو او د زده‌کوونکو له درنو اولیاوو څخه هیله لرم چې د معارف د موخو د لاسته راوړو په برخه کې له هیڅ ډول مرستې څخه ډډه ونه کړي. دغه راز له ټولو لیکوالو، پوهانو، د ښوونې او روزنې له ماهرینو او د زده‌کوونکو له محترمو اولیاوو څخه هیله کیږي چې په خپلو رغنده نظرونو، وړاندیزونو او نیوکو د درسي کتابونو په لاښه والي کې د پوهنې له وزارت سره مرسته وکړي.

لازمه بولم له ټولو ښاغلو مؤلفانو، د پوهنې وزارت له اداري او فني کارکوونکو او له ملي او نړیوالو بنسټونو څخه، چې د دغه کتاب په چمتو کولو، چاپولو او ویش کې یې زیار ایستلی او مرسته یې کړې، مننه وکړم.

په پای کې له لوی خدایﷻ څخه غواړم چې په خپله بې پایه مهربانۍ له موږ سره د پوهنې د سپیڅلو ارمانونو په لاسته راوړلو کې مرسته وکړي. انه سمیع قریب مجیب.

**د پوهنې وزیر**

**دوکتور اسدالله حنیف بلخي**

## سریزه

د قرآن کریم زده کول او نورو ته ښودل د مسلمانانو او د اسلامي ټولنې لازمي فریضه ده، نو له همدې امله د یو مسلمان په توګه د قرآن کریم تدریس کوو چې د رسول اللهﷺ د حدیث مصداق وګرځو چې وایي (خیرکم من تعلم القران و علمه) ژباړه: په تاسو کې غوره هغه څوک دی چې قرآن کریم زده کړي او نورو ته یې وښایي د پورته حدیث په پیروی سره ښاغلی ښوونکی ددې مضمون په تدریس کې حتاالوسع کوښښ کوي ترڅو یې د دنیا او آخرت د نیک بختۍ سبب شي او هم زده کوونکي وکولای شي چې خپلو عالي موخو ته ورسېږي چې هغه د قرآن کریم په زده کړه باندې تسلط پیدا کول دي. همدارنګه: د قرآن کریم د زده کړې په دغه لارښود کتاب کې د تجوید د قواعدو له بیانولو پرته د (همزه، القارعه او تکاثر سورتونو ترجمه او تفسیر د لازیاتو معلوماتو په خاطر راوړل شوی دی. مؤلف د قرآن کریم د مضمون د تدریس لپاره ضروري نقطې ښوونکو ته په لاندې توګه وړاندې کوي.

۱. د څلورم ټولګی د قرآن کریم د زده کړې مضمون په اونۍ کې درې ساعته دي چې د ۲۸ اونیو د ټول تعلیمي کال درسي ساعتونه ۸۴ کیږي.
۲. د قرآن کریم د زده کړې مضمون درې برخې لري:
   أ. د معلوماتو برخه
   ب. د تلاوت برخه
   ج. د حفظ برخه
۳. ښاغلی ښوونکی به د قرآن کریم د زده کړې په تدریس سره زده کوونکي د هجا د تورو په صحیح تلفظ سره مجبور کړي.
۴. ښاغلی ښوونکی به زده کوونکي له هغو حروفو سره چې حرکت لري او یا یې نه لري، د قرآن کریم په رسم خط لیکل کېږي او که نه لیکل کېږي بلد کړي.
۵. د څلورم ټولګي د حفظ برخې ته درې سورتونه په نظر کې نیول شوي دي چې عبارت دي له: القارعه، تکاثر او همزه سورتو څخه، دوه سورتونه باید له څلورنیمو میاشتو څخه مخکې حفظ شي او بل سورت باید له څلور نیمو میاشتو څخه وروسته حفظ شي.

ښاغلی ښوونکی دې په هره اونۍ کې دوه آیتونه له محفوظاتو څخه کورنۍ دنده ورکړي. هر هغه لوستل شوی سورت چې په دغه کتاب کې یې لارښونه شوې ده چې د ناظره لوست ترڅنګ د حفظ د لوست چوکاټ څخه د ګټې اخیستلو په صورت کې زده‌کوونکو ته وړاندې کړي کله چې د حفظ لوستونو ته رسېږي سورتونه د مراجعې د لوست په شکل تدریسوي.

٦. زده کوونکي باید پوه شي چې د قرآن کریم د زده کړې په وخت کې په اوداسه ولري او د قرآن کریم د وړلو او راوړلو په وخت کې یې آداب وساتل شي.
۷. د قرآن کریم د زده کړې هر لوست په لاندې مراحلو تقسیم شوی دی:
   أ. د قرآن کریم د کلمو لوستل
   ب. د قرآن کریم د آیتونو د جملو لوستل
   ج. د قرآن کریم پوره آیت لوستل
   د. د قرآن کریم د صحیح تلفظ او د تجوید د تطبیق په خاطر د ځینو کلمو لوستل او تمرین کول.
۸. ښاغلی ښوونکی دې د راتلونکې ورځې آیتونه زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په توګه ورکړي چې حفظ یې کړي.
۹. ښاغلی ښوونکی دې د لوست په ټولو برخو کې زده کوونکي وهڅوي او له ډول سپکاوي څخه دې ځان وساتي او د کتاب په پای کې د وقف نښې او اقسام بیان شوی دی.

# لړلیک

**سر لیکونه** **پاڼه**

**لومړی لوست**

**سرلیک: د قرآن کریم سورتونه**

**مخ: ۱**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د مکي سورتونو شمیر بیان کړای شي.
- د قرآن کریم له تلاوت سره مینه پیدا کړي.
- پوه شي چې د مکې مکرمې او مدینې منورې ښارونه په کوم هیواد کې دي.

**اړین معلومات:**

د قرآن کریم ډېر سورتونه چې شمیر یې ۸۶ ته رسیږي د پیغمبرﷺ د پیغمبرۍ د دیارلسو کلونو په موده کې د مکې مکرمې په ښار کې نازل شوي دي. که څه هم له دغو سورتونو څخه ځیني د مکې مکرمې له ښار څخه بهر نازل شوي. اما دا چې پیغمبرﷺ په مکه مکرمه کې اوسیده نو ځکه ورته مکي سورتونه وایي.

**د مکي سورتونو ځانګړتیاوې:**

۱. دغه سورتونه اکثره په عقیده څرخیږي.
۲. په دغو سورتونو کې د مخکنیو امتونو کیسې ډیرې د پند او عبرت لپاره په نظر راځي.
۳. په دغو سورتونو کې مسلمانان د صبر، استقامت او په نیکو باندې امر ته هڅول شوي دي.

دا ښکاره خبره ده چې حضرت محمدﷺ د علق سورت له نازلیدو وروسته چې لومړی مکي سورت دی په هغه ښار کې چې ظلم، تیری، وحشت، حتی د لورګانو ژوندي خښول پکې حاکم وو د خدایﷻ لخوا په پیغمبرۍ معبوث شو. د دیارلسو کالو په موده کې یې د دعوت، بشارت، نذارت او رسالت مسؤولیت په ښکاره او په پټ ډول له ستړیا، ستوماني او د توحید د دښمنانو او د حق او دعوت د منع کوونکو له ویرې پرته د مکې مکرمې په ښار کې پر مخ بیولو. د مسلمانانو لپاره د بعثت په دغه دوره کې لویه ډاډینه د مکي سورتونو او آیتونو نزول و. تر دې چې د اللهﷻ له خوا ورته د ښکاره امر وشو. اللهﷻ وفرمایل: ﴿فَاصْدَعْ بِمَا تُؤْمَرُ وَأَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِينَ﴾.[1]

**ژباړه:** اې پیغمبره د کوم شي چې تاته حکم کیږي هغه په لوړ اواز ووایه او د مشرکانو یو بڅری پروا مه کوه.

مدني سورتونه هغو سورتونو ته ویل کیږي چې په مدینه منوره کې نازل شوي وي.

که څه هم له دغو سورتونو څخه ځیني په نورو سیمو کې نازل شوي دي د بیلګې په توګه کله چې رسول اللهﷺ په سفر یا جهاد کې و. اما دا چې رسول اللهﷺ په مدینه منوره کې اوسیده، نو هغه سورتونه هم د مدني سورتونو له جملې څخه شمیرل کیږي چې شمیر یې ۲۸ سورتونو ته رسیږي.

---

[1] حجر: ۹٤

**د مدني سورتونو ځو ځانګړتیاوې:**

1. ددغو سورتونو زیاته برخه په عمل او مکلفیت باندې څرخیږي.
2. د احکامو اکثره آیتونه له همدغو سورتونو څخه اخیستل شوي دي.
3. ددغو سورتونو اکثره مخاطبین د یهودو قومونه دي.

رسول اللهﷺ په مکه مکرمه کې له دیارلس کالو اوسیدلو څخه وروسته د الله جل جلاله په امر یثرب ته هجرت وکړ چې د مدینې منورې پخوانی نوم و، د خپل رسالت لس کاله مسؤولیت یې په غاړه درلوده. یعنی د مرګ تــر وخت پورې یې د هغه نبوغ او کمال په وجه وکولای شول چې اسلام له یو وړوکي هیواد څخه په قـــوي او پیاوړې اسلامي امپراطورۍ چې د روم او فارس فاتح هم بلل کیږي، بدل کړي ان تر دې چې کفار هم په دغه حقیقت اقرار کوي.

**د تدریس لارې**: په انفرادي ډول، سوال او ځواب، مطالعه.

**د لوست مرستندویه توکي**: کتاب، تخته، تباشیر، او داسې نور...

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده‌کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، د زده‌کوونکو د حال احوال له پوښتلو څخه وروسته زده‌کوونکو ته څلورم ټولګي ته د تللو مبارکي وایي بیا د ټولګي نظم برابروي. حاضري اخلي او د څلورم ټولګي لپاره د قرآن کریم زده کړه وریپېژني او د هغو سورتونو په هکله ورته معلومات وړاندې کوي چې په نوي تعلیمي کال کې باید حفظ شي او هم د قرآن کریم د زده کولو د اهمیت او ګټو په باره کې له زده‌کوونکو سره خبرې اترې کوي. | زده کوونکي د ښوونکي خبرو ته ښه فکر کوي. |
| ۲۵ دقیقې | د نوي لوست سرلیک (د قرآن‌کریم سورتونه) په تخته لیکي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي، بیا لوست په مناسب اواز پیل کوي او لوست په څو زده‌کوونکو باندې لولي او غلطي یې اصلاح کوي د ټولګي کنټرول هم ساتي.<br>بیا زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په چُپه خوله مطالعه کړي. او په خپله د ټولګي په څنډو کې قدم وهي او د زده‌کوونکو څارنه او سر پرستي کوي د زده‌کوونکو ستونزې حل کوي او هم زده‌کوونکو ته لارښونه کوي چې هر یو له خپل نږدې ملګري سره د قرآن‌کریم د سورتونو په هکله خبرې اترې وکړي. | زده کوونکي لوست په چُپه خوله لولي او زده کوونکي دوه دوه نفره د قرآن کریم د سورتونو په اړوند خبرې اترې کوي. |
| ۵ دقیقې | له څلور تنو زده‌کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل وار د ټولګي مخې ته راشي. لوست د کتاب له مخې ولولي ښوونکی ورسره مرسته کوي.<br>**د لوست لنډیز:**<br>مکي سورتونه هغه سورتونه دي چې له هجرت څخه مخکې نازل شوي دي او شمیر یې (۸۶) سورتونو ته رسیږي.<br>او د اخلاص سورت هم د مکي سورتونو له جملې څخه دی.<br>مدني سورتونه هغه دي چې له هجرت څخه وروسته نازل شوي دي او د بقرې سورت د مدني سورتونو له جملې څخه دی. | بیا څلور زده کوونکي په خپل وار د ټولګي مخې ته راځي او خپله کړنه سرته رسوي او نور د دوی کړنو ته ګوري. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>په لاندې پوښتنو سره د زده‌کوونکو ارزونه وکړئ.<br>۱. زمونږ د نن ورځې د لوست سر لیک څه و؟<br>۲. د مکي سورتونو شمیر څومره دی؟<br>۳. مکي سورتونه له هجرت څخه مخکې نازل شوي او که له هجرت څخه وروسته؟<br>**کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی دې زده‌کوونکو ته لارښونه وکړي چې لوست یو ځل په خپلو کتابچو کې ولیکي. | زده کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته سم ځواب ووایي. |

## دوهم لوست

## سرلیک: د قرآن کریم فضائل

**مخ: ۲**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

۱. د قرآنکریم له سورتونو سره بلدتیا پیدا کړي.
۲. پوه شي چې د قرآنکریم په یو توري څو نیکۍ ورکول کېږي.
۳. د قرآنکریم له تلاوت سره مینه وښيي.
۴. پوه شي چې د سحر او جادو لپاره کوم سورتونه ګټور دي.

**اړین معلومات:**

**قرآنکریم له لوړو فضایلو څخه برخمن دی. رسول اللهﷺ د قرآن کریم د فضایلو په هکله ډېر احادیث فرمایلي دي. یو څو هغه احادیث بیانوو چې په لوست پورې تړاوو لري.**

عن عثمانرضي الله عنه قال: قال رسول اللهﷺ: خیرکم من تعلم القرآن وعلمهُ. رواه بخاری

**ژباړه: له حضرت عثمانرضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول اللهﷺ فرمایلي: غوره په تاسو کې هغه څوک دی چې قرآنکریم خپله زده کړي او نورو ته یې وښيي.**

عن انسرضي الله عنه قال: ان رجلا قال: یا رسول اللهﷺ اني احب هذه السورة ﴿قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ﴾[الاخلاص:۱] قال: إن حبك ایاها ادخلك الجنة. رواه ترمذي

**ژباړه: یو سړي رسول اللهﷺ ته وویل: اې د الله جل جلاله پیغمبرﷺ زه له دغه سورت سره مینه لرم** ﴿قل هو الله احد﴾ **رسول اللهﷺ وویل ددغه سورت محبت به تا جنت ته داخل کړي. (ځکه دغه سورت د توحید بیانوونکی دی).**

عن ابن مسعودرضي الله عنه قال: رسولﷺ: من قرأ حرفا من کتاب الله فله به حسنة و الحسنة بعشر أمثالها لااقول الم حرفٌ الف حرفٌ ولام حرف و میم حرف. رواه ترمذی والدارمی.

**ژباړه: له حضرت ابن مسعودرضي الله عنه څخه روایت دی رسول اللهﷺ فرمایلي دي چاچې یو توری د الله جل جلاله له کتاب څخه ولوستلو ده ته به نیکي وي چې هره نیکي په لس چنده ده یعني یو پر لس نیکي ورکوي زه نه وایم چې «الف لام میم» یو توری دی بلکې الف ځانته توری لام ځان ته توری او میم ځانته توری دی د هرتوري په بدل کې الله جل جلاله لس نیکۍ ورکوي.**

**د قرآنکریم فضیلت او غوره والی د نورو اسماني کتابونو په پرتله دادی چې قرآنکریم احکام د قیامت تر ورځې پورې د اجرا وړ دي، د تورات، انجیل او زبور په شان تر یو وخت او زمان پورې مقید ندي او داسې کتاب دی چې د ټول بشریت لپاره راغلی دی نه د یو قوم لپاره او داسې کتاب دی چې الله جل جلاله ددې کتاب ساتنه او حفاظت په خپله کوي لکه څنګه چې د حجر سورت په نهم آیت کې یې فرمایلي** ﴿إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ﴾. **ژباړه: په تحقیق سره قرآنکریم موږ نازل کړی دی او په خپله یې حفاظت کوو.**

نو ځکه دغه کتاب له هر ډول تحریف څخه محفوظ دی. نور کتابونه له دغو ځانګړتیاوو څخه برخمن ندي.
د رسول اللهﷺ د ژوند په زمانه کې دغه قرآن کریم لیکنه چې اوس یې موږ په لاس کې لرو یعنې مصحف چې په ټول قرآن کریم باندې مشتمل دی شتون نه درلود بلکې په تیت او پرک بیلابیلو شیانو لیکل شوی و. هر کله چې د حضرت ابو بکر صدیقؓ د خلافت په وخت کې د یمامه په جنګ کې د قرآن کریم حافظان لـــه ۷۰ کسانو څخه زیات شهیدان شول، نو حضرت عمرؓ ته ویره پیدا شوه چې د حافظانو د شهادت سره د قرآن کریم د آیتونو ځنې برخې ورکې نشي، نو ابوبکر صدیقؓ ته یې وړاندیز وکړ چې قرآن کریم باید په یو مصحف کې ولیکل شي، د مسلمانانو خلیفه دغه وړاندیز د حضرت عمرؓ د ډیر تاکید په وجه قبول کړ او د وحې کاتبانو ته یې لارښوونه وکړه چې د قرآن کریم ټول آیتونه راجمع او په یو مصحف کې ولیکـــې او د دوی مشري زید ابن ثابتؓ کوله دغه کار یې ډیر په اخلاص او افتخار سره سرته ورساوه دغه قرآن کریم چې اوس زمونږ په لاس کې دی د هغوی د کوښښونو حاصل دی.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده‌کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو څخه وروسته د زده‌کوونکو د حال احوال پوښتنه کوي بيا د ټولګي نظم برابروي.<br>حاضري اخلي او د تير لوست په هکله پوښتنې کوي.<br>مکي سوروتونه ته ولې مکي سورتونه وايي؟ | |
| ۲۵ دقيقې | بيا د نوي لوست سرليک (د قرآن کريم فضايل) په تخته ليکي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي بيا لوست په مناسب اواز سره پيل کوي.<br>لوست په دری زده‌کوونکو باندې لولي او خپله په عين وخت کې د ټولګي څارنه کوي او غلطي يې هم اصلاح کوي.<br>زده‌کوونکو ته لارښونه کوي چې لوست په چُپه خوله مطالعه کړي او هم يې په خپله سر پرستي کوي.<br>زده‌کوونکو ته لارښونه کوي چې هر يو د خپل څنګ ملګري سره د (قرآن کريم د فضايلو) په هکله خبرې وکړي. | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته ښه غوږ نيسي.<br>زده کوونکي لوست په چپه خوله لولي.<br>زده کوونکي دوه دوه نفره د مدني سورتونو په هکله له يو بل سره خبرې اترې کوي. |
| ۵ دقيقې | بيا له څلورو زده‌کوونکو څخه غواړي چې هر يو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي او لوست د کتاب له مخې ولولي او په عين وخت کې له هغوی سره مرسته وشي او تشويق شي.<br>**د لوست لنډيز:** څوک چې د قرآن کريم يو توری ولولي هغه ته لس نيکۍ ورکول کيږي. د اخلاص سورت تلاوت په وجه د قرآن کريم د دريمې برخې برابر اجر او ثواب ورکوي غوره مسلمان هغه دی چې قرآن کريم زده کړي او نورو ته يې وښيي. | څلور زده کوونکي په خپل وار سره د تختې مخې ته راځي او خپله کړنه سرته رسوي.<br>ټول زده کوونکي د دوی کړنې ته متوجه کوي. |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:**<br>په لاندې پوښتنو سره د زده‌کوونکو ارزونه وکړئ؟<br>۱. د نن ورځې د لوست سرليک مو څه و؟<br>۲. قرآن کريم څو سورتونه لري؟<br>۳. د قرآن کريم په لوستلو سره څه ورکول کيږي؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته لارښونه کوي چې لوست يو ځلي په خپلو کتابچو کې وليکي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته سم ځواب وايي. |

**دريم لوست**

**سرليک: د بقرې سورت ۱۰۹ آيت تلاوت**

**مخ:۳**

**وخت: يو درسي ساعت ۴۵ دقيقې**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- **د تلاوت په وخت کې د تجويد احکام مراعات کړای شي.**
- **د لوست آيت صحيح تلاوت کړای شي.**
- **د لوست د آيت له تلاوت سره مينه پيدا کړي.**

**اړين معلومات:**

**اظهار په لغت کې ښکاره کولو ته وايي او په اصطلاح کې د ساکن نون او تنوين ښکاره کولو ته اظهـــار وايي.**

**د اظهار توري عبارت دي له: ء، ع، ح، هــ، خ، غ څخه.**

**دغو تورو ته حلقي توري هم وايي.**

**لکه:** من اَهْلِ

**د لوست په آيت کې د نورو قواعدو سر بيره ادغام او اقلاب د ساکن نون او تنوين تر احکامو پورې تـــړاو لري، لکه د** ﴿كَثِيرٌ مِّنْ﴾ **په کلمه چې تنوين (دوه پيښونه) د (م) په توري کې مدغم شوي دي او د (م) توری د ادغام له شپږو تورو څخه يو توری دی چې د «يرملون» په کلمه کې جمع شوي دي.**

**او د** ﴿مِّن بَعْدِ﴾ **په کلمه کې اقلاب شوی ځکه له تنوين څخه وروسته د (ب) توری چې د اقلاب توری دی راغلی دی د** ﴿قَدِيرٌ﴾ **په کلمه کې سره لدې چې د (ر) توری تنوين لري اما د آيت د وقـــف پـــه ســـبب د مخکنې دريم توري حکم اخلي چې مکسور دی، له دې لحاظه د (ر) توری باريک لوستل کيږي او له دينـــه پرته که چېرې د (ر) توری مفتوح او يا مضموم وي يا تنوين (دوه زورونه يا دوه پيښونه ولري) ډک لوستل کيږي اما که يوازې مکسور وي باريک لوستل کيږي.**

**د تدريس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير، او داسې نور...

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده‌کوونکو کړنې |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې | – ښاغلی ښوونکی د حال احوال له پوښتلو له څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي بیا حاضري اخلي او د څو پوښتنو په کولو سره د تېر لوست ارزونه کوي لکه څوک کولای شي مدني سورتونه بیان کړي؟ | |
| | – بیا د نوي لوست سرلیک (د بقرې سورت **۱۰۹** آیت) د تختې پر مخ لیکي او هم زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او لوست په مناسب اواز سره پیل کوي بیا زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په چُپه خوله ولولي او د جدول کلمات له خپل ځان سره زیات تکرار کړي ښاغلی ښوونکی یې ستونزې حلوي. | زده کوونکي د ښوونکي خبرو ته ښه غوږ شي. |
| ۲۵ دقیقې | – اوهم څو زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې په خپل ورا سره د لوست لومړۍ برخه ولولي او نور زده کوونکي یې ورسره تکرار کړي. د درس په جریان کې ټولګی په خپل کنترول کې ساتي او د بې نظمۍ مخه نیسي. | زده کوونکي لوست په چُپه خوله لولي. |
| | بیا له شپږ زده‌کوونکو څخه غواړي چې په ناسته د لوست برخه ښه په دقت سره ولولي. او ښوونکی یې لوستنه اوري او غلطي ورته اصلاح کوي. بیا د جدول کلمات د تختې پر مخ لیکي او په زده کوونکو یې مشق کوي. بیا له دوو زده‌کوونکو څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي او یوه کلمه د تختې له مخې دویم ځل ولیکي او مرسته هم ورسره وشي. | څلور زده کوونکي د ټولګي مخې ته راځي او کړنه په ښه شان سرته رسوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>څوک کولای شي د لوست لومړۍ برخه ولولي؟<br>څوک کولای شي د (حتی) کلمه د تختې پر مخ ولیکي او وواییي چې (ی) تلفظ کیږي او که نه؟<br>څوک کولای شي د لوست دویمه برخه ولولي. | شپږ زده کوونکي د لوست کړنې په ښه شان سرته رسوي او نور زده کوونکي ورته متوجه کوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته دوه آیتونه د القارعه له سورت څخه تلاوت کوي. بیا زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې هغه حفظ کړي.<br>**نوټ:** هغه ټول آیتونه چې د حفظولو لپاره په کورنۍ دنده کې ورکول کیږي هغه دې بیا ورڅخه واوري. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته سم ځواب وایي. |

## ځلورم لوست

## سرلیک: د بقرې سورت ۱۱۰ آیت تلاوت

**مخ: ٦**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت سره مینه پیدا کړای شي.
- د لوست توري له خپل مخرج څخه تلفظ کړای شي.
- د قرآن کریم په اهمیت او فضلیت باندې وپوهیږي.

**اړین معلومات:**

**د الله‌ﷻ په لفظ کې (ل) د حرکت په اعتبار سره کله ډک لوستل کیږي او کله باریک چې دلته یــوازې د ډک لوستلو تشریح کوو. که چیرې د الله‌ﷻ په لفظ کې له (ل) څخه مخکې حرکت باندې فتحه یا ضـــمه وي ډک او مفخم اداء کیږي.**

**﴿وَأَقِيمُواْ الصَّلاَةَ وَآتُواْ الزَّكَاةَ﴾ په کلمو کې (ص) او (ز) توري مشدد دي او په داسې توگه باید ادا شي چې هم يې د صفت حق ادا شي او هم یې د مشدد کیدلو رعایت وشي. دغه توري د صفیر له تورو څخه دي. د صفیر توری درې توري دي ((ص، ز، س)) صفیر یو خاص ځانگړی اواز دی چې د ذکر شوو تورو د تلفظ په وخت کې د ثنایا غاښونو او پورته اضراس غاښونو تر منځ خارجیږي. ددې دوو تورو (ز، ص) مخـــرج لـــه لاندې ثنایا سره د ژبې د سر لگیدل دي او د ژبې د اړخ لگیدل دي د پاسنیو اضراس غاښونو سره په عـــین حال کې د (ص) توری د استعلا په صفت سره توصیف شوی یعنې ډک ادا کیږي د استعلا او یـــا مســـتعلیه توري له دغو اوو تورو څخه عبارت دي: ((خ، ص، ض، غ، ط، ق، ظ)) (خص، ضغط، قظ) ددې تورو د ادا کولو په وخت کې د ژبې بیخ پورته تالو ته مایل کیږي.**

**د تدریس لارې: مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.**

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر، او داسې نور...

| د زده‌کوونکو کړنې | د ښوونکي کړنې | وخت |
|---|---|---|
| | – ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو وروسته د تېر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک کولای شي د تېر لوست دریمه برخه صحیح ولولي؟ | ۵ دقیقې |
| زده کوونکي د ښوونکی خبرو ته ښه غوږ نیسي.<br>زده کوونکي لوست په چپه خوله لولي.<br>څلور زده کوونکي د ټولګي مخې ته راځي خپل فعالیت سرته رسوي.<br>شپږ زده کوونکي په خپل وار سره فعالیت اجراء کوي نور زده کوونکي ورته متوجې کوي. | – بیا د نوي لوست سر لیک د بقرې سورت ۱۱۰ آیت د تختې پر مخ لیکي او د زده‌کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي بیا د لوست ټولې برخې په مناسب اواز سره لولي اوهم څو زده کوونکي په خپل وار سره د تختې مخې ته راغواړي لارښوونه ورته کوي چې هریو د لوست یوه یوه برخه ولولي البته لومړۍ او دوهمه برخه په داسې انداز کې ولولي چې نور زده کوونکي یې ورسره تکرار کړي. پرته له دریمې برخې څخه چې یو زده کوونکی په خپله لولي او نور زده کوونکي ورته غوږ نیسي.<br>– بیا زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په پټه خوله مطالعه کړي او خپله ښوونکی ددوی څارنه کوي او ستونزې ورته حل کوي او څو زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې هر یو په خپل وار سره د لوست برخې تلاوت کړي او نور زده کوونکي ورته غوږ ونیسي د لوست په جریان کې د دوی تلاوت ته پام کوي، او هم ټولګی په خپل کنټرول کې ساتي بیا له شپږو تنو زده‌کوونکو څخه غواړي چې په خپل ځای کیني لوست په دقت سره ولولي غلطي یې اصلاح کړي. او هم د لوست د وروستي جدول کلمات په تخته لیکي په زده‌کوونکو یې مشق کوي بیا له دوو زده‌کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي، یوه کلمه د تختې پر مخ دوباره ولیکي او د زده‌کوونکو د کړنو په بهیر کې له هغوی سره مرسته کوي. | ۲۵ دقیقې |
| زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته سم ځواب وایي. | **ارزونه:**<br>څوک کولای شي د لوست اوله برخه ولولي؟<br>څوک کولای شي د ﴿بَصِيرٌ﴾ کلمه د تختې پر مخ ولیکي؟<br>څوک کولای شي د لوست دوهمه برخه ولولي؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته لارښونه کوي چې لوست دوه ځلې د کتاب له مخې ولولي. | ۱۰ دقیقې |

## پنځم لوست

## سرليک: د بقرې سورت ۱۱۱ آيت تلاوت

**مخ:۸**

**وخت: يو درسي ساعت ۴۵ دقيقې**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- د لوست آيت صحيح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آيت په تلاوت سره مينه پيدا کړي.
- د تجويد د علم اهميت درک کړي.

**اړين معلومات:**

**د تجويد د علم پېژندنه:**

تجويد په لغت کې د ښه ګرځولو په معنا دی او په اصطلاح کې د تورو صحيح اداکول، د مخارجو او صفاتو پېژندل د وقف او وصل د ځايونو خيال ساتلو ته تجويد وايي.

**د تجويد د علم موضوع:** د تجويد علم د قرآن کريم له تورو يعنی له (الف) څخه نيولې تر (ی) پورې بحث کوي.

**تجويد د علم غرض:** له خپلو مخرجونو څخه د قرآن کريم د تورو اداکول او د تلاوت په وخت کې له لحن او خطاء څخه د ژبې ساتل دي.

د تجويد د علم حکم: په هر مسلمان لازم دي چې قرآن کريم د تجويد د احکامو او قواعدو مطابق ولولي لکه څنګه چې الله جل جلاله فرمايلي: ﴿وَرَتِّلِ الْقُرْآنَ تَرْتِيلًا﴾.[۲] **ژباړه:** قرآن کريم په دقت سره ولولئ. حضرت علی رضي الله عنه وايي مراد له ترتيل څخه تجويد دی يعنې قرآن کريم په تجويد سره ولولئ. د (هـ) مخرج: د حلق وروستۍ برخه ده له خپل مخرج څخه دې دقيق ادا کړای شي د دغه حرف تلفظ د لوست په کلمو کې په زده‌کوونکو باندې تمرين کړي.

د لوست د آيت **ژباړه:** يهود او نصارا وايي هيڅوک به جنت ته داخل نشي مګر يهود يا نصارا خودا تش باطل اميدونه دي نو دوی ته به وويل شي که چېرې تاسې رښتيني ياست نو واضح او ښکاره دليل راوړئ.

تفسير: يهودو دعوه لرله چې له موږ څخه پرته بل څوک جنت ته نشي داخليدلی او نصارا وايي له موږ څخه پرته بل څوک جنت ته نشي داخليدلی. دغه دعوې د دوی له دې وجې وې چې هرې يوې ډلې به ويل چې موږ د الله جل جلاله دوستان بلکې زامن يو لکه چې الله جل جلاله د مائدې سورت په ۱۸ آيت کې د دوی دغه د دروغو وينا بيان کړې ده.

[۲] مزمل: ٤

﴿وَقَالَتِ الْيَهُودُ وَالنَّصَارَى نَحْنُ أَبْنَاء اللّهِ وَأَحِبَّاؤُهُ قُلْ فَلِمَ يُعَذِّبُكُم بِذُنُوبِكُم بَلْ أَنتُم بَشَرٌ مِّمَّنْ خَلَقَ يَغْفِرُ لِمَن يَشَاء وَيُعَذِّبُ مَن يَشَاء وَلِلّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا وَإِلَيْهِ الْمَصِيرُ﴾.

**ژباړه: يهود او نصارا وايي چې موږ د الله ﷻ زامن او خپلوان يو، له هغو نه پوښتنه وکړه، نو هغه ستاسو په گناهونو تاسو ته سزا ولې درکوي؟ په حقيقت کې تاسې هم هماغسې انسانان ياست لکه چې نور انسانان الله ﷻ پيدا کړي دي هغه چې چا ته وغواړي ببښنه کوي او چاته يې چې خوښه شي، سزا ورکوي. اسمانونه او ځمکه او د هغو تر منځ ټول موجودات د الله ﷻ ملکيت دی او د هماغه لوري ته د ټولو ورتگ دی.**

**د تدريس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير، او داسې نور...

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده‌کوونکو کړنې |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې | – ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو څخه وروسته په څو پوښتنو سره د تېر لوست ارزونه کوي. مثلاً څوک کولای شي د تېر لوست دریمه برخه صحیح ولولي؟ | |
| ۲۵ دقیقې | – بیا د نوي لوست سرلیک (د بقرې سورت ۱۱۱ آیت تلاوت) په تخته لیکي.<br>– بیا زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجې کوي او لوست په مناسب اواز سره پیل کوي او هم دریو زده‌کوونکو ته لارښونه کوي چې هر یو په خپل وار سره په خپل ځای ناسته کې د لوست یوه برخه ولولي او نور زده کوونکي یې پسې تکراروي او هم څلور زده کوونکي د لوست د دوهمې برخې په لوستلو باندې مکلف کوي چې هر یو یې یوه یوه کرښه له چوکاټ څخه په خپل وار سره ولولي او نور زده کوونکي یې ورپسې تکراروي او مرسته ورسره کوي.<br>– بیا زده‌کوونکو ته لارښونه کوي چې لوست په چپه خوله مطالعه کړي.<br>– خپله د زده‌کوونکو نګراني کوي او ستونزې یې ورته حل کوي. بیا زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په خپل وار سره تکرار کړي، نور زده کوونکي خپلو کتابونو ته په دقت سره ګوري. بیا له شپږو زده‌کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل ځای ناسته کې د لوست یوه برخه په خپل وار سره ولولي.<br>– ښوونکی دې هغو زده کوونکو ته چې له لوست سره مینه کمه لري او په لوست کې کم حاضر وي ډېره پاملرنه وکړي او خپله دې ټولګی هم کنټرول کړي د زده‌کوونکو ستونزې دې ورته حل کړي. بیا دې د لوست کلمات په تخته ولیکي او په زده کوونکو دې تمرین کړي بیا دې له دوو زده‌کوونکو وغواړي چې د ټولګي مخې ته راشي یوه کلمه د تختې له مخې دویم ځل ولیکي او د فعالیت په جریان کې ورسره مرسته وکړي. | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته ښه غوږ نیسي.<br>زده کوونکي لوست په چپه خوله لولي.<br>څلور زده کوونکي د ټولګي مخې ته راځي خپل فعالیت سرته رسوي او نور زده کوونکي یې ورسره تکرار وي.<br>شپږ زده کوونکي په خپل وار سره د لوست کړنه سرته رسوي او نور زده کوونکي د دوی کړنې ته متوجې وي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱. څوک کولای شي د لوست لومړۍ برخه ولولي؟<br>۲. څوک کولای شي د «قل» کلمه د تختې پر مخ ولیکي؟<br>۳. څوک کولای شي د لوست دریمه برخه ولولي؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی دې زده‌کوونکو ته دنده ورکړي چې لوست ۱۰ ځله ولولي. | زده کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته سم ځواب ووایي. |

**شپږم لوست**

**سرليک: د بقرې سورت ۱۱۲ آيت تلاوت**

**مخ: ۱۰**

**وخت: يو درسي ساعت ۴۵ دقيقې**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- د لوست آيت صحيح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آيت له تلاوت سره مينه پيدا کړي.
- د اظهار حکم وپيژني او هم يې توري را په ګوته کړي.

**د لوست لومړني فعاليتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو څخه وروسته تېر لوست په يو زده کوونکي باندې لولي بيا نوی لوست په پوره پاملرنې سره پيل کوي. او هم د لوست آيت په زده‌کوونکو باندې لولي او زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هريو په خپل وار سره د لوست آيت د مخارجو په لحاظ ساتلو سره د کتاب له مخې ولولي بيا د لوست د دريم پړاو کلمې د تختې پرمخ ليکي او په زده کوونکو يې مشق کوي.

**اړين معلومات:**

د﴿وَجْهَهُ﴾ په کلمه کې دې دقت وشي چې د دواړو «هه» ګانو حق ادا شي او هم دې کوښښ وشي چې «هه» له خپل مخرج څخه چې د حلق وروستۍ برخه ده، اداء شي.

څو د (ها) او (ح) تر منځ توپير وشي.

**صله مد:** هغه مد ته وايي چې کله د (هـ) ضمير مفرد مذکر غايب مضموم يا مکسور د کلمې په پای کې راشي مخکې او وروسته ترې متحرک راشي لکه: ﴿فَلَهُ عِبَادِهِ أَجْرُهُ﴾ په کلمو کې صله مد دی چې د منفصل مد حکم لري. منفصل مد هغه دی چې د مد توری په يوه کلمه کې او د هغه سبب چې همزه ده په وروستۍ کلمه کې راغلی وي ددې مد حکم روا دی. کله قصر د دوو حرکتونو د اصلي مد) په شان ادا کيږي او کله طول (اوږدوالی) د څلورو حرکتونو په اندازه کش کيږي. لدې کبله دغه مد د جايز مد په نوم هم يادېږي.

۱: د منفصل مد مثالونه: ﴿بِمَا أُنزِلَ، إِلاَّ أَنفُسَهُم، فَتَلَقَّى آدَمُ، إِنَّنَا آمَنَّا، لاَ إِلَـــهَ، فِي أَيِّ، فَقَالُوا إِنَّا﴾.

۲: د امام حفص رحمه الله په نزد چې مورږ د هغه د روايت په شان تلاوت کوو منفصل مد له څلورو حرکتونو څخه د پنځو حرکتونو په اندازه کش کيږي.

بيا زده‌کوونکو ته بايد دنده ورکړل شي څو د اظهار مثالونه چې په دغه لوست کې دي، تمرين کړي او هم له هريو څخه پوښتنه وشي.

**د تدريس لارې**: مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.

**د لوست مرستندويه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشير، او داسې نور...

**کورنۍ دنده**: ښاغلی ښوونکی د القارعه سورت له دوو آيتونو اوريدلو څخه وروسته د زده کوونکو غلطـــي اصلاح کوي او وروسته دنده ورته سپاري څو ددې سورت دوه نور (۳–۴) آيتونه حفظ کړي.

**اووم لوست**

**سرلیک: د بقرې سورت ۱۱۳ آیت تلاوت له لومړۍ پارې څخه**

**مخ:۱۲**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت سره مینه پیدا کړي.
- ساکن نون او تنوین وپیژني او هم یې توپیر وکړای شي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو څخه وروسته تیر لوست په یو زده کوونکي باندې لولي بیا په نوي لوست په پوره پاملرنې سره پیل کوي او د لوست آیت په زده‌کوونکو باندې لولي او هم زده‌کوونکو تـه وخـت ورکوي چې هریو په خپل وار سره د لوست آیت د مخارجو په لحاظ ساتلو سره د کتاب له مخې ولولي بیا د لوست د دریم پړاو کلمې د تختې پرمخ لیکي او په زده کوونکو یې مشق کوي.

**اړین معلومات:**

**د تنوین او ساکن نون احکام:** تنوین او ساکن نون څلور حکمونه لري **۱**–اظهار، **۲**–ادغام **۳**–اقـلاب **۴**–اخفاء.

(۱)ساکن نون له هغه نون څخه عبارت دی چې حرکت ونه لري. د وصل او وقف په حالتونو کې په رسـم خط کې ثابت پاتې کیږي. د مثال په توګه: ﴿إِنْ، اَنْزِلَ، مَنْ﴾.

(۲) تنوین له دوه زورونو، دوه زیرونو او دوه پېښونو څخه عبارت دی.

(۳) ساکن نون له تنوین سره په درې حالتونو کې توپیر لري.

۱– ساکن نون د کلمې په منځ او آخر کې او تنوین یوازې د کلمې په پای کې راځي.

۲– ساکن نون په لفظ او رسم خط کې ثابت پاتې او تنوین یوازې لفظاً ادا کیږي او په خـط کـې د دوه زورونو، او زیرونو او پېښونو په څیر لیکل کیږي.

۳– ساکن نون د وصل او وقف په حالت کې ثابت پاتې او تنوین یوازې د وصل په حالت کې ثابـت پـاتې کیږي. زده کوونکي د (ص) او (ر) تورو تلفظ د دغه لوست په کلماتو کې تمرین کوي.

**د تدریس لارې**: مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر، او داسې نور...

**اتم لوست**

**سرلیک: د دويمې پارې د بقرې سورت ۱۱۳ آيت تلاوت**

**مخ:۱۴**

**وخت: يو درسي ساعت ۴۵ دقيقې**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- پوه شي چې اظهار په لغت کې ښکاره کولو ته وايي.
- د لوست آيت صحيح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آيت له تلاوت سره مينه پيدا کړي.

**د لوست لومړني فعاليتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو څخه وروسته تېر لوست په يو زده کوونکي باندې لولي بيا په نوي لوست پيل کوي. او د لوست آيت په پوره پاملرنې سره په زده‌کوونکو باندې لولي او هم زده‌کوونکو تــه وخــت ورکوي چې هريو په خپل وار سره د لوست آيت د مخارجو په لحاظ ساتلو سره د کتاب له مخې ولولي بيا د لوست د دريم پړاو کلمې د تختې پرمخ ليکي او په زده کوونکو يې مشق کوي.

**اړين معلومات:**

د اظهار تعريف: اظهار په لغت کې ښکاره کولوته وايي.

د تجويد په اصطلاح کې د تلفظ په وخت کې په ښکاره ډول له مخرج څخه د توري را ويستلو ته اظهــار وايي. يعنې د اظهار له توري څخه مخکې ژبه د نون د توري په ځای ونښلي او د اظهار توری په اسانه توگه پرته له هيڅ ډول توپير څخه اداء شي.

شاعر د اظهار توري په نظم کې راوړي.

د حلق توري شپږ دي ای بی و فا – همزه، ها، عين، حا، غين، وخا.

کله چې له دغو شپږو تورو څخه يو توری له ساکن نون اويا تنوين څخه وروسته راشي اظهار کيږي. د (ع) توری له حلقي تورو څخه دی او مخرج يې د حلق منځ (وسط) دی ددغه توري د تلفظ په وخت کې کوښښ وشي چې په همزې سره بدل نشي.

**د تدريس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير، او داسې نور...

## نهم لوست

## سرلیک: د بقرې سورت ۱۱۴ آیت تلاوت

**مخ:۱٦**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت سره مینه پیدا کړي.
- د لوست په کلماتو کې د ادغام حکم مراعات کړای شي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو څخه وروسته تېر لوست په یو زده کوونکي باندې لولي بیا په نوي لوست پیل کوي د لوست آیت په پوره پاملرنې سره په زده‌کوونکو باندې لولي او هم زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هریو په خپل وار سره د لوست آیت د مخارجو په لحاظ ساتلو سره د کتاب له مخې ولـــولي اوهـــم د لوست دریم پړاو کلمې د تختې پرمخ لیکي او په زده کوونکو یې مشق کوي.

**اړین معلومات:**

ادغام په لغات کې داخیلولو ته وایي او د تجوید په اصطلاح کې: د ساکن نون او تنوین داخلیدل دي په یو د ادغام د شپږګونو تورو کې.

د ادغام توري د (یرملون) په کلمه کې جمع شوي دي ددې کلمې په څلورو تورو (ی، ن، م، و) کې ادغام با غنه کیږي او په دوه نورو تورو یعنی (ل، ر) کې پرته له غنې ادغام کیږي.

د ﴿مِمَّن مَّنَعَ﴾ په کلمو کې ادغام سره له غنې کیږي ځکه چې له ساکن نون څخه وروسته د (م) توری راغلی دی. غنه له هغه اواز څخه عبارت ده چې د پوزې له بیخ څخه راوځي.

که چیرته خوله بنده هم وي د غنې اواز جاري پاتې کیدلای شي. د ﴿أَن يُذْكَرَ﴾ او د ﴿خِزْيٌ وَلَهُـــمْ﴾ پــه کلماتو کې هم ادغام له غنې سره راغلی دی او د ﴿خَآئِفِينَ﴾ په کلمه کې متصل مد واقع شوی دی.

زده کوونکي د (ز) او (ر) تورو تلفظ ددغه لوست په کلماتو کې تمرین کړي ترڅو خپله هم په عملي توګه ددغو تورو مخرج پیدا کړي.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر، او داسې نور...

**کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی له زده‌کوونکو څخه د القارعه د سورت ۳ – ۴ آیتونو په یادو لـــه اوریـــدلو څخه وروسته د هغوی غلطي اصلاح کوي بیا دې دنده ورکړي چې دوه نور آیتونه (۵–٦) دقیق حفظ کړي.

**لسم لوست**

## سرليک: د بقرې سورت ۱۱۵ آيت تلاوت

**مخ:۱۸**

**وخت: يو درسي ساعت ۴۵ دقيقې**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- د لوست آيت صحيح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آيت له تلاوت سره مينه وښايي.
- د (ل) توري حکم د الله ﷻ په لفظ کې مراعات کړای شي.

**د لوست لومړني فعاليتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو څخه وروسته تېر لوست په يو زده کوونکي باندې لولي. بيا نوی لوست په پوره پاملرنې سره پيل کوي. او د لوست آيت په زده‌کوونکو باندې لولي او هم زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هريو په خپل وار سره د لوست آيت د مخارجو په لحاظ ساتلو سره د کتاب له مخې ولولي بيا د لوست د دريم پړاو کلمې د تختې پرمخ ليکي او په زده کوونکو يې مشق کوي.

**اړين معلومات:**

د الله ﷻ په لفظ کې د (ل) توری دوه حکمه لري په هغه صورت کې چې د الله ﷻ له لفظ څخه مخکې توری فتحه يا ضمه ولري، نو د الله ﷻ لفظ ډک لوستل کيږي لکه: ﴿وَجْهُ اللّهِ، إِنَّ اللّهَ﴾. له لوست څخه بهر مثالونه: ﴿ بِمَا أَنزَلَ اللّهُ، اللَّهُ الَّذِي، وَلَوْ يَشَاءُ اللَّهُ، تَنصُرُوا اللَّهَ ﴾ که چيرته د الله ﷻ له لفظ څخه مخکې کسره وي د الله ﷻ لفظ باريک لوستل کيږي لکه ﴿وَلِلّهِ﴾ له لوست څخه بهر مثالونه ﴿عَن سَبِيلِ اللَّهِ، فَاعْبُدِ اللَّهَ، بِاللَّهِ﴾ د ﴿فَثَمَّ﴾ کلمې د تلفظ په وخت کې او د کلماتو د مشق په صورت کې د (ث) په توری باندې ډېر ترکيز وشي او زده‌کوونکو ته يادونه وشي چې ددغه توري مخرج د ژبې څوکه او د پاس ثنايا عليا غاښونو سره دی. د ذال مخرج ورسره شريک دی.

د (ث) توری دقيق له خپل مخرج څخه تلفظ شي چې د (س) توري سره يې توپير وشي، نو بايد کوښښ وشي چې له خپل مخرج څخه تلفظ شي.

**د تدريس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادي.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور...

## يوولسم لوست

## سرليک: د بقرې سورت ۱۱٦ آيت تلاوت

**مخ: ۲۰**

**وخت: يو درسي ساعت ۴۵ دقيقې**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- د لوست آيت صحيح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آيت له تلاوت سره مينه پيدا کړي.
- د مثلين ادغام په پېژندلو قادر وي.

**د لوست لومړني فعاليتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو وروسته تېر لوست په يو زده کوونکي باندې لولي بيا نوی لوست په پوره پاملرنې سره پيل کوي. او هم زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هريو په خپل وار سره د لوست آيت د مخارجو په لحاظ ساتلو سره د کتاب له مخې ولولي. بيا د لوست دريم پړاو کلمې د تختې پرمخ ليکي او په زده کوونکو يې مشق کوي.

**اړين معلومات:**

د ﴿بَل لَّهُ، كُلٌّ لَّهُ﴾ په کلمه کې ادغام مثلين واقع شوی.

که چيرې دوه هم مثله توري په صفت او مخرج کې يو د بل پسې راشي اول توری ساکن او دوهم توری متحرک وي يو په بل کې مدغم کيږي او په دغه صورت کې ادغام يې واجب دی. لکه: پورته مثالونه

د لوست څخه بهر مثالونه: ﴿فَقُلْنَا اضْرِب بِّعَصَاكَ الْحَجَرَ، وَقَد دَّخَلُواْ بِالْكُفْرِ، قَالَ أَلَمْ أَقُل لَّكُمْ﴾.

د ﴿وَلَدًا﴾ له کلمې څخه وروسته وړوکی لام راغلی دی، دغه توري ته د وصل علامه وايي ددغه (لا) توري په موجوديت کې وقف نه کيږي.

تنوين يعنې دوه زورونه د ﴿وَلَدًا﴾ په کلمه کې اخفاء کيږي. ځکه له دې وروسته د (س) توری د (سبحنه) په کلمه کې راغلی دی او د (س) توری د اخفاء له پنځلسو تورو څخه دی. د اخفاء توري عبارت دي له: ت، ث، ج، د، ذ، ز، س، ش، ص، ض، ط، ظ، ف، ک، ق، څخه اخفاء په لغت کې پټولو ته وايي او د اظهار ضد دی او د تجويد په اصطلاح کې د ساکن نون او تنوين پټول دي کله چې د اخفاء له پنځلسو ۱۵ تورو څخه يو توری له نون ساکن او تنوين څخه وروسته راشي، نو په ساکن نون او تنوين کې اخفاء کيږي.

**د لوست څخه بهر مثالونه لکه:** ﴿مِن قَبْلِ، وَاللّهُ عَزِيزٌ ذُو انتِقَامٍ، شَيْءٌ فِي الأَرْضِ، أَنزَلَ عَلَيْكَ، عِندِ رَبِّنَا، أَنتَ الْوَهَّابُ، فِئَةٌ تُقَاتِلُ﴾.

زده کوونکي دې د (ق) توری د دغه لوست په کلماتو کې عملاً تمرين کړي.

**د تدريس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير، او داسې نور...

## دولسم لوست

## سرلیک: د بقرې سورت ۱۱۷ آیت تلاوت

**مخ: ۲۱**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت سره مینه پیدا کړي.
- د وصل همزه وپېژني.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو څخه وروسته تېر لوست په یو زده کوونکی باندې لولي. بیا نوی لوست په پوره پاملرنې سره پیل کوي. او هم زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هریو په خپل وار سره د لوست آیت د مخارجو په لحاظ ساتلو سره د کتاب له مخې ولولي. بیا د لوست دریم پړاو کلمې د تختې پرمخ لیکي او په زده کوونکو یې مشق کوي.

**اړین معلومات:**

**د وصل او قطع همزې احکام:**

د وصل همزه هغه ده چې حرکات ولري لکه زور، زیر، پېښ کله چې په یو ساکن توري باندې تلفـظ پیـل کیږي، نو د وصل او قطع له همزې څخه ګټه اخیستل کیږي. لکه ﴿اِضْرِبْ، اُدْخُلْ، اَیْمَن﴾ کله چې د وصل همزه د کلمې په اول کې راشي د پورته مثالونو په شان تلفظ او ادا کیږي او که د کلمو په وسط کې راشي لیکل کیږي خو لوستل کیږي نه، لکه «بسم الله الرحمن الرحیم» او هغه د قطع همزه ده که په اول د کلمـه او یا په منځ د کلمې کې راشي هم لوستل کیږي او هم لیکل کیږي لکه (أ – اٍ) د مشق او تمرین د کلمو په جدول کې د تجوید دوه قاعدې شتون لري: ۱– منفصل مد ۲– اخفاء، د درسي کتاب له مثالونو پرته دغه دوه قاعدې باید زده‌کوونکو ته تشریح شي د لوست له آیت څخه د لومړۍ کلمې د تلفظ په وخـت کـې کوښښ وشي چې د (ع) توری له خپل مخرج څخه ادا شي چې مخرج یې وسط حلق دی او که پـام لرنـه ورته ونشي په همزې سره بدلیږي.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر، او داسې نور...

**کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی ۵–۶ دوه آیتونه د القارعه له سورت څخه په یادو اوری. غلطي ورته اصلاح کوي بیا دنده ورکوي چې دوه آیتونه نور ۷–۸ دقیق په یادو یاد کړي.

**دیارلسم: لوست**

**سرلیک: د بقرې سورت ۱۱۸ آیت تلاوت**

**مخ:۲۲**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- حلقي توري و پېژني.
- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست له آیت له تلاوت سره مینه پیدا کړي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو څخه وروسته تېر لوست په یو زده کوونکي باندې لولي. بیا نوی لوست په پوره پاملرنې سره پیل کوي. او هم زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هریو په خپل وار سره د لوست آیت د مخارجو په لحاظ ساتلو سره د کتاب له مخې ولولي. بیا د لوست دریم پړاو کلمې د تختې پرمخ لیکي او په زده کوونکو یې مشق کوي.

**اړین معلومات:**

د ﴿قَدْ بَيَّنَّا﴾ په کلمه کې باید ښه دقت وشي چې (ی، ن) توري مشدد ولوستل شي او دغه کلمه په زده‌کوونکو باندې زیات مشق شي. مدوره (ة) یا د تأنیث تا د وقف په حالت کې په (ه) بدلیږی لکه د لوست دغه کلمه (آية) البته د مطلق وقف د علامې په اعتبار چې هغه علامه د (ط) له وړوکی توری څخه دی.

**د مخرج تعریف**: مخرج اسم مکان دی. په لغت کې د وتلو ځای ته وایي او په اصطلاح کې د توري د راوتلو ځای ته مخرج وایي لکه حلق چې د شپږو تورو مخرج دی (ء، ه، ع، حا، غ، خا) هر کله چې وغواړو چې د یو توري مخرج معلوم کړو هغه توری به ساکن کړو او د وصل همزه به وربانديې داخل کړو بیا به یې تلفظ کړو په هر ځای کې مو چې اواز ختم شو همغه ځای د همغه توری مخرج ده.

د تورو مخارج په څلورو قسمه دي ۱– جوف (د خولې خالیگاه) ۲– خوله – ۳– ژبه ۴–دواړه شنډې.

زده کوونکي دې د حروفو د مخارجو د پیدا کولو کړنلاره چې په درسي کتاب کې شرحه شوې ده، په عملی توگه کار کړي.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر، او داسې نور...

**څوارلسم: لوست**
**سرلیک: د بقرې سورت ۱۱۹ آیت تلاوت**
**مخ:۲۴**
**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**
**موخې: زده کوونکي باید:**

- پوه شي چې ثنایا غاښونه کوم غاښونه دي.
- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت سره مینه پیدا کړي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو څخه وروسته تېر لوست په یو زده کوونکي باندې لولي. بیا نوی لوست په پوره پاملرنې سره پیل کوي. او د لوست آیت په زده‌کوونکو باندې لولي او هم زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هریو په خپل وار سره د لوست آیت د مخارجو په لحاظ ساتلو سره د کتاب له مخې ولولي. بیا د لوست دریم پړاو کلمې د تختې پرمخ لیکي او په زده کوونکو یې مشق کوي.

**اړین معلومات:**

په دیارلسم لوست کې چې څلور مخرجونه بیان شوي هغه دادي:

۱– جوف (د خولې خالیگاه) ۲– خوله ۳– لسان ۴ – دواړه شنډې په یولسو ټکو کې پـــه مفصـــل ډول تشریح کیږي.

۱– د (ب، و، م) تورو مخرج شونډې دی ۲– د (ف) مخرج: کله چې پاس غاښونه له لاندې شونډو سره ولگول شي د «فا» مخرج راښیي ۳– د (ث، ذ، ظ) تورو مخرج د پورته ثنایا او لاندې ثنایا غاښونو جوف دی. ۴– د (ت، د، ض، ط، ل، ن) تورو مخرج د وړې ژبې سر د پورته ثنایا غاښونو بیخ او وری دي ۵– د (س، ش، ر، ن) ددې تورو مخرج د پاس غاښونو وری دي ٦– (ج، ش) مخرج کله چې د وری اخري برخه د تالو له لومړی برخې سره ولگیږي (ج، ش،) ادا کیږي. ۷– مینځ د تالو د (ی) مخرج دي ۸– وروســـته برخه د تالو د (ک) مخرج دی. ۹– د (ق، خ، غ) تورو مخرج «وړه ژبه» ده. ۱۰– د (ع، و) تورو مخرج حلق دی. ۱۱– اخیر د حلق یا حنجره د (ء، هـــ) تورو مخرج دی.

لثه: له هغې غوښې څخه عبارت ده چې د غاښونو په وروستی برخه کې شتون لري.

لهات: له هغې وړې ژبې څخه عبارت دی چې د تالو په پای کې شتون لري ځنې توري په مخرجونو کې له یو بل سره شریک دي، خو په صفاتو کې یو بل سره توپیر لري لکه (د، ت) توري چې مشترک مخرج لري خو په صفت کې یو له بل سره توپیر لري ځکه د (د) توری په صفت د قلقلې سره متصف دی او په عین وخت کې د محجوره تورو څخه هم دي او د (ت) توری نه د قلقلې له تورو څخه دی او نه له محجوره تورو څخه دی بلکې د مهموسه تورو څخه دی او ځنې توري په صفت کې یو له بل سره مشترک دي اما په مخرج کې یو له بل څخه توپیر لري لکه د (ط) توری یا د (ق) توری دا دواړه توري د قلقلې او تفخیم په صفت کې یو له بل سره شریک دي او په مخرج کې یو له بل سره توپیر لري.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر، او داسې نور...

**پنځلسم: لوست**

## سرلیک: د بقرې سورت ۱۲۰ آیت تلاوت

**مخ:۲۵**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست په آیت له تلاوت سره مینه پیدا کړای شي.
- د (ص) توری د مخرج او صفت په مراعات کولو سره ادا کړای شي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو څخه وروسته تېر لوست په یو زده کوونکي باندې لولي، بیا نوی لوست په پوره پاملرنې سره پیل کوي او د لوست آیت په زده‌کوونکو باندې لولي او هم زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هریو په خپل وار سره د لوست آیت د مخارجو په لحاظ ساتلو سره د کتاب له مخې ولولي. بیا د لوست د دریم پړاو کلمې د تختې پرمخ لیکي او په زده کوونکو یې مشق کوي.

**اړین معلومات:**

د ﴿وَلاَ النَّصَارَى﴾ په کلمه کې د (ص) توری ډک لوستل کیږي ځکه له مستعلیه تورو څخه دی او همدارنگه د (ر) توری ډک لوستل کیږي ځکه چې مفتوح دی.

د ﴿مِن وَلِيٍّ وَ﴾ په کلمه کې ادغام سره له غنې په ساکن نون او تنوین دواړو کې راغلي او د (جَآءکَ) پــه کلمه کې متصل مد شتون لري چې د څلورو نه تر پنځو او د وقف په وخت کې تر شپږو حرکتونو پـــورې کش کیږي. د هر مد حرکت کشکول د لاس د یوې گوتې د خلاصولو په اندازه وي او هم ورته وویل شي چې د ﴿وَلَئِنِ اتَّبَعْــتَ﴾ په کلمه کې کوښښ وشي چې د (ع) توری له خپل مخرج څخه ادا شي چې په همزه بدل نشي د (نصیر) په کلمه کې (ر) باریکه لوستل کیږي.

ځکه تنوین یعنې دوه زیرونه لري.

زده‌کوونکو ته باید وویل شي چې د (ط) توري د تلفظ په وخت کې دې د استعلا صفت په نظر کې ونیــول شي.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**کورنۍ دنده:**

ښاغلی ښوونکی له زده‌کوونکو څخه د القارعه سورت ۷–۸ آیتونه اوري، غلطي ورته اصلاح کوي او بیــا دنده ورکوي چې درې نور آیتونه ۹–۱۱ په یادو یاد کړي.

**شپاړسم: لوست**

**سرلیک: د بقرې سورت ۱۲۱ آیت تلاوت**

**مخ:۲۷**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت سره مینه پیدا کړای شي.
- د تلاوت په وخت کې د متصل مد رعایت وکړای شي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو څخه وروسته تېر لوست په یو زده کوونکي باندې لولي، بیا نوی لوست په پوره پاملرنې سره پیل کوي او د لوست آیت په زده‌کوونکو باندې لولي او هم زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هریو په خپل وار سره د لوست آیت د مخارجو په لحاظ ساتلو سره د کتاب له مخې ولولي. بیا د لوست د درېیم پړاو کلمې د تختې پرمخ لیکي او په زده کوونکو یې مشق کوي.

**اړین معلومات:**

د ﴿فَأُوْلَـٰئِكَ﴾ په کلمه کې متصل مد دی ځکه د مد توری او سبب یې په یوه کلمه کې جمع شـوي دي ددې مد حکم واجب دی.

متصل مد د وصل په وخت کې د څلور یا پنځو حرکتونو په اندازه کش کیږي د وقف په وخت کې د څلورو نه تر شپږو حرکتونو کش کیږي.

جمهور قاریان پرې اتفاق لري چې متصل مد له درې حرکتونو کم او له شپږو حرکتونو اضافه نه ادا کیږي، د ﴿الْخَاسِرُونَ﴾ په کلمه کې (خ، ر) دواړه توري ډک لوستل کیږي ځکه د (خ) توری له مستعلیه تورو څخه دی. همدارنگه د (ر) توری مضموم دی، ضمه لري، نو کله چې دغه توری ضمه او فتحه ولري، ډک لوستل کیږي او که کسره ولري باریک لوستل کیږي او که دغه توری ساکن وي د مخکني توري حکم اخلي لکه ﴿وَمَنْ يَّكْفُرْ﴾ په کلمه کې ادغام سره له غنې دی او ادغام په دوه ډوله دی.

۱. له غنې سره ادغام ۲. له غنې پرته ادغام

ادغام له هغه اواز څخه عبارت دی چې د پوزې له وروستۍ برخې (خیشوم) څخه راوزي.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**اوولسم: لوست**

**سرلیک: د بقرې سورت ۱۲۲ آیت تلاوت**

**مخ:۲۹**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- پوه شي چې لین د نرمی په معنا دی.
- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست آیت له تلاوت سره مینه پیدا کړای شي.
- د لین مد توري وپیژني.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو څخه وروسته تېر لوست په یو زده کوونکي باندې لولي. بیا نوی لوست په پوره پاملرنې سره پیل کوي او هم د لوست آیت په زده‌کوونکو باندې لولي او زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هریو په خپل وار سره د لوست آیت د مخارجو په لحاظ ساتلو سره د کتاب له مخې ولولي. بیا د لوست د درېیم پړاو کلمې د تختې پرمخ لیکي او په زده کوونکو یې مشق کوي.

**اړین معلومات:**

لین په لغت کې نرمۍ ته وایي او په اصطلاح کې له خپل مخرج څخه د توري راویستل دي. په داسې نرم شکل چې د کش کولو وړتیا ولري. کوم توري چې دغه صفت ولري د (لین تورو) په نامه یادېږي. او دغه صفت په دوه تورو (و – ی) کې دی. په هغه وخت کې ورته د لین صفت ورکول کېږي چې خپله ساکن او مخکې توری یې مفتوح وي. د لین صفت د (و – ی) تورو دایمي (همېشنې) صفت دی، خو د هغوی د ساکن والي پر مهال او د خولې د خلاصېدو په وجه په مخکنۍ فتحه کې ددې دوو تورو د نرمۍ اولین حالت ډېرېږي، خو له دې کبله مد منځ ته راځي چې له یوه څخه تر دوه حرکتونو کش کېږي.

متصل مد او د (ذ) توري تلفظ د ﴿إِسْرَائِيلَ اذْكُرُواْ﴾ په کلمو کې په زده‌کوونکو باندې عملاً تمرین کړئ.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر، او داسې نور...

**اتلسم: لوست**

**سرليک: د بقرې سورت ۱۲۳ آيت تلاوت**

**مخ: ۳۱**

**وخت: يو درسي ساعت ۴۵ دقيقې**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- د لوست آيت صحيح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آيت له تلاوت سره مينه پيدا کړای شي.
- د تجويد قواعد چې په تېرو لوستونو کې لوستلي وو په دغه لوست کې ورته پاملرنه وشي.

**د لوست لومړني فعاليتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو څخه وروسته تېر لوست په يو زده کوونکي باندې لولي. بيا نوی لوست په پوره پاملرنې سره پيل کوي او د لوست آيت په زده‌کوونکو باندې لولي او هم زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هريو په خپل وار سره د لوست آيت د مخارجو په لحاظ ساتلو سره د کتاب له مخې ولولي. بيا د لوست د دريم پړاو کلمې د تختې پرمخ ليکي او په زده کوونکو يې مشق کوي.

**اړين معلومات:**

د ﴿ وَاتَّقُواْ ﴾ په کلمه کې د همزې توری چې د لومړي واو څخه وروسته راغلی هغه د وصل همزه ده ليکل کيږي خو تلفظ ورباندې نه کيږي او هغه توری چې د دويم واو څخه وروسته راغلی دی دې ته د جمع الف وايي او د وصل همزې په شان ليکل کيږي خو تلفظ ورباندې نه کيږي.

د ﴿يَوْماً لا﴾ په کلمه کې پرته له غنې ادغام دی ځکه له تنوين څخه وروسته د (ل) توری راغلـــی دی او دا توری د ادغام پرته له غنې له دوه تورو څخه يو توری دی.

د (تجزی) په کمله کې د (ج) په توري کې وړه قلقله کيږي. ځکه د (ج) توری د کلمې په منځ کې ســـاکن واقع شوی دی دغه توری د قلقلې له پنځو تورو څخه دی او د قلقلې توري د (قطب جد) په عبـــارت کـــې جمع شوي دي که د قلقلې توري د کلمې په پای کې ساکن واقع شوي وي، کبرا قلقه ورته ويل کيږي.

د ﴿عَن نَّفْسٍ﴾ په کلمه کې ادغام مثلين راغلی دی.

د ﴿شَيْئاً وَلاَ﴾ په کلمه کې ادغام سره له غنې راغلی دی.

﴿ يُقْبَلُ ﴾ په کلمه کې هم قلقله صغرا ده ځکه (ق) د کلمې په منځ کې ساکن واقع شوی دی.

د ﴿مِنْهَا﴾ په کلمه کې اظهار راغلی ځکه له ساکن نون څخه وروسته د (ه) توری راغلی دی.

د لوست د وروستي جدول په کلمو کې چې ادغام له غنې سره دی په زده‌کوونکو باندې تمرين کړئ.

**د تدريس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادي.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور...

**نولسم لوست**

**سرلیک: د بقرې سورت ۱۲۴ آیت تلاوت**

**مخ:۳۳**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د القارعه سورت له یادو ولوستلی شي.
- د تجوید په قواعدو پوه شي.

**یادونه**

دا چې د القارعه سورت حفظول د تیرې اونۍ په لوستونو کې د کورنۍ دندې تر عنوان لاندې تمام شو، نو له ښاغلي ښوونکي څخه په درنښت هیله کوو چې د نن ورځې د ناظره لوست ترڅنګ د القارعه سورت ټول آیتونه په حفظ سره د لوست په شکل د لاندې چوکاټ د لارښونو سره سم زده‌کوونکو ته وړاندې کړي. البته دغه آیتونه به مخکې زده‌کوونکو په یادو یاد کړي وي، نو ښاغلی ښوونکی به و کولای شي چې وروستي لوستونه د بیا کتنې په شکل زده‌کوونکو ته وړاندې کړي.

**اړین معلومات**

د القارعه سورت د قیامت شروع او د اعمالو له نتایجو څخه بحث کوي.

**د القارعه سورت ژباړه:** له هغه ستره پیښه، له څه ده هغه ستره پیښه، ته څه پوهیږي چې هغه ستره پیښه څه ده؟ هغه ورځ چې کله خلک د خورو ورو پتنګانو غوندې شي او غرونه د رنګ رنګ ډنډس شویو وړیو غوندې شي. بیا چې د چا تله درنده وي هغه به په زړه پورې خوندونو کې وي او د چا تله چې سپکه وي د هغه هستوګنځی به ژوره کنده وي او ته څه خبر یې چې هغه څه شی دي لمبه وهونکی اور دی.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

| د زده‌کوونکو کړنې | د ښوونکي کړنې | وخت |
|---|---|---|
| دوه زده کـــوونکي دې د القارعه سورت پـــه يـــادو ولولي. | – ښاغلی ښوونکی د حال احوال له پوښـــتلو څخـــه وروســـته مقدماتي خبرې بيانوي او وايي چې نن ورځ د القارعه ســـورت په يادو او مشق سره تکراره وو او خپله دی هم پـــه ډېـــرې پاملرنې سره د القارعه سورت په يادو لولي. بيا دې له يو خوش آوازه زده کوونکي څخه وغواړي چې په ښايســـته اواز ســـره ددغه سورت تلاوت وکړي او نور زده کـــوونکي دې ددغـــه سورت تلاوت ته غوږ ونيسي. | ۵ دقيقې |
| د لوست آيتونه له ځـــان سره تکرار کړي. | – ښاغلی ښوونکی دې دغه مبارک سورت ولولي او زده‌کوونکو ته دې لارښونه وکړي چې ما پسې يې په مناســـب آواز ســـره تکرار کړئ.<br>– بيا دې زده‌کوونکو ته څو دقيقې وخت ورکړي چې آيتونه په پټه خوله له ځان سره تکرار کړي.<br>– بيا دې زده‌کوونکو ته لارښونه وکړي چې هر يو دغه سورت د خپل څنگ ملگري ته په يادو تکرار کـــړي ددې ســـورت د عظمت په هکله دې رڼا واچوي او پورته ژباړه دې هم ورتـــه تشريح کړي. | ۲۵ دقيقې |
| ټول زده کوونکي د لوست په هلکه چمتوالی ښـــکاره کوي. | **ارزونه:**<br>په لاندې پوښتنو سره دې د زده‌کوونکو ارزونه وکړي.<br>۱– څوک کولای شي درې لومړي آيتونه په يادو تلاوت کړي؟<br>۲– څوک کولای شي ور پسې درې نور آيتونه تلاوت کړي؟<br>۳– څوک کولای شي ور پسې ۵ آيتونه تلاوت کړي؟<br>۴– څوک کولای شي مبارک سورت ټول په يادو ولولي؟ | ۱۰ دقيقې |

## شلم لوست

## سرلیک: د بقرې سورت ۱۲۵ آیت تلاوت

**مخ:۳۵**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست آیت له تلاوت سره مینه ولري.
- د تجوید قواعد چې په مخکې لوستونو کې مو لوستلي په دغه لوست کې ورته پاملرنه وکړي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو څخه وروسته تېر لوست په یو زده کوونکي باندې لولي، بیا نوی لوست په پوره پاملرنې سره پیل کوي او د لوست آیت په زده‌کوونکو باندې لولي او زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هریو په خپل وار سره د لوست آیت د مخارجو په لحاظ ساتلو سره د کتاب له مخې ولولي. بیا د لوست د دربیم پړاو کلمې د تختې پرمخ لیکي او په زده کوونکو یې مشق کوي.

**اړین معلومات:**

د ﴿ مَثَابَةً لِّلنَّاسِ ﴾ په کلمه کې ادغام پرته له غنې دی ځکه له تنوین څخه وروسته دوه زورونه د (ل) په توری راغلي دي.

د ﴿مِن مَّقَامِ﴾ په کلمه کې ادغام له غنې سره شتون لري ځکه له ساکن نون څخه وروسته د (م) توری راغلی دی.

﴿وَعَهِدْنَا﴾ په کلمه کې منفصل مد دی ځکه د مد توری په دغه کلمه کې او سبب یې د (الی) په کلمه کې راغلی دی.

د ﴿طَهِّرَا﴾ په کلمه کې باید کوښښ وشي چې (هـ) توری په داسې شکل سره تلفظ شي چې د شد حق ادا شي.

د ﴿السُّجُودِ﴾ په کلمه کې د (د) توری که څه هم مکسور دی، خو د وقف له وجې ساکن شوی قلقله کبرا پکې کیږي ځکه چې په پای د کلمې کې راغلی دی.

د ﴿لِلطَّائِفِينَ﴾ په کلمه کې متصل مد دی ځکه د مد توری او د هغه سبب په یوه کلمه کې جمع شوی دی د

**تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

## يوشتم لوست

## سرليک: د بقرې سورت ۱۲۶ آيت تلاوت

**مخ:۳۷**

**وخت: يو درسي ساعت ۴۵ دقيقې**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- د لوست آيت صحيح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آيت له تلاوت سره مينه ولري.
- شفوي اخفاء د تلاوت پرمهال مراعات کړي.

**د لوست لومړني فعاليتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو څخه وروسته تېر لوست په يو زده کوونکي باندې لولي، بيا نوی لوست په پوره پاملرنې سره پيل کوي او د لوست آيت په زده‌کوونکو باندې لولي او هم زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هريو په خپل وار سره د لوست آيت د مخارجو په لحاظ ساتلو سره د کتاب له مخې ولولي، بيا د لوست د درېيم پړاو کلمې د تختې پرمخ ليکي او په زده کوونکو يې مشق کوي.

**اړين معلومات:**

اخفاء شفوي: کله چې (م) ساکن څخه وروسته (ب) راشي شفوي اخفاء کيږي. د شفوي اخفاء طريقه او د اقلاب طريقه يوه ده کله چې د دواړو شونډو د و چو برخو د يو ځای کيدلو په وخت کې د يو الف يا د دوه حرکتونو په اندازه غنه وشي د (ب) توری ادا کيږي.

**د شفوي اخفاء مثالونه**

﴿مَنْ آمَنَ مِنْهُم بِاللّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ﴾ په کلمه کې د (ر) توری باريک ادا کيږي. ځکه د (ر) توری مکسور دی او که چيرته وقف وشي له (ر) څخه مخکې توري ته کسره ورکوي بيا باريک ادا کيږي.

له لوست څخه بيروني مثالونه: ﴿وَاتَّقَكُم بِهِ، يُعَذِّبُكُم، بِذُنُوبِكُم، وَمَا هُم بِخَارِجِينَ، فَاحْكُم بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ، رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ، فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ﴾.

﴿الْمَصِيرُ﴾ په کلمه کې د (ر) توری ضمه لري د وقف له امله د دريم توري حکم اخلي چې مکسور دی او باريک لوستل کيږي.

**د تدريس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادي.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور...

**کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده ورکوي چې ۱ – ۲ آيتونو پورې د تکاثر له سورت څخه په يادو ياد کړي.

**دوه ويشتم لوست**

**سرليک: د بقرې سورت ۱۲۷ آيت تلاوت**

**مخ:۳۹**

**وخت: يو درسي ساعت ۴۵ دقيقې**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- د لوست آيت صحيح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آيت له تلاوت سره مينه ولري.
- شمسي او قمري لام وپيژني.

**د لوست لومړني فعاليتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو څخه وروسته تېر لوست په يو زده کوونکي باندې لولي، بيا نوی لوست په پوره پاملرنې سره پيل کوي او د لوست آيت په زده‌کوونکو باندې لولي او هم زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هريو په خپل وار سره د لوست آيت د مخارجو په لحاظ ساتلو سره د کتاب له مخې ولولي، بيا د لوست د درېم پړاو کلمې د تختې پرمخ ليکي او په زده کوونکو يې مشق کوي.

**اړين معلومات:**

**شمسي او قمري لام:**

**قمري لام:** هغه زايد لام ته وايي چې د څوارلسو قمري تورو، لکـــه: (ا، ب، غ، ح، ج، ک، و، خ، ف، ع، ق، ی، م) مخکې راشي، لوستل کېږي او هم ليکل کيږي.

شمسی لام هغه زايد لام ته وايي چې له څوارلسو شمسی تورو، لکه: (س، ش، ث، ت، د، ذ، ن، ر، ز، ص، ض، ط، ظ، ل) مخکې راشي، ليکل کېږي، خو لوستل کېږي نه:

د شمسي لام مثال: انت السميع.

د قمري لام مثال: (ابراهيم القوعد)

**د لوست څخه پرته د شمسي مثالونه:** ﴿الدُّنْيَا، دار السَّلم، وَلَـــكِنَّ النَّاسَ، فِي السَّمَاوَاتِ، وَفَارَ التَّنُّورُ، فَتَأْكُـــلُ الطَّيْرُ، يَا صَاحِبَيِ، السِّجْنِ، فَأَنسَاهُ الشَّيْطَانُ﴾.

**له لوست څخه پرته قمري مثالونه:** ﴿قُضِيَ الأَمْرُ، قَالَ الملِكُ، كَيْدَ الْخَائِنِينَ، أَيَّتُهَا الْعِيرُ، مِنَ الْمُشْرِكِينَ، وَالْبَاطِلَ، سُوءُ الْحِسَابِ، مِنَ الْعِلْمِ﴾.

**تدريس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادي.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور...

**درویشتم لوست**

**سرلیک: د بقرې سورت ۱۲۸ آیت تلاوت**

**مخ: ۴۱**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت سره مینه ولري.
- د لوست کلمې صحیح تلفظ کړای شي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو څخه وروسته تېر لوست په یو زده کوونکي باندې لولي، بیا نوی لوست په پوره پاملرنې سره پیل کوي او د لوست آیت په زده‌کوونکو باندې لولي او هم زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هریو په خپل وار سره د لوست آیت د مخارجو په لحاظ ساتلو سره د کتاب له مخې ولولي، بیا د لوست د دریم پړاو کلمې د تختې پرمخ لیکي او په زده کوونکو یې مشق کوي.

**اړین معلومات:**

د ﴿وَاجْعَلْنَا﴾ په کلمه کې وړه قلقله ده ځکه د (ج) توری له پنځو تورو د «قطب جد» څخه دی.

د ﴿ذُرِّيَّتِنَا﴾ په کلمه کې کوښښ وشي چې د تلفظ په وخت کې د شد حق ادا کړي. او د (ج) وړوکی توری د جایز وقف علامه ده چې وصل او وقف یې جایز دی. د ﴿أَنتَ﴾ په کلمه کې اخفاء کیږي.ځکه له ساکن نون څخه وروسته د (ت) توری راغلی چې د اخفاء له تورو څخه دی.

د ﴿عَلَيْنَآ﴾ په کلمه کې کوښښ وشي چې د (ع) توری له خپل مخرج څخه ادا شي چې په همزې سره بدل نشي.

زده کوونکي دې د (ر) توري ډک لوستلو او باریک لوستلو مثالونه په دغه لوست کې تمرین کړئ.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

## ځلیر ویشتم لوست

## سرلیک: د بقرې سورت ۱۲۹ آیت تلاوت

**مخ:۴۳**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست آیت له تلاوت سره مینه ولري.
- د تلاوت پرمهال د شفوي اظهار رعایت وکړای شي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو څخه وروسته تېر لوست په یو زده کوونکی باندې لولي، بیا نوی لوست په پوره پاملرنې سره پیل کوي او د لوست آیت په زده‌کوونکو باندې لولي او هم زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هریو په خپل وار سره د لوست آیت د مخارجو په لحاظ ساتلو سره د کتاب له مخې ولولي، بیا د لوست د دریم پړاو کلمې د تختې پرمخ لیکي او په زده کوونکو یې مشق کوي.

**اړین معلومات:**

د ﴿وَابْعَثْ﴾ په کلمه کې ښه دقت وشي چې د (ث) توری له خپل مخرج څخه ادا شي. مخرج یې د ژبې څوکه او د ثنایا علیا غاښونو سر دی. په داسې اندازې سره ادا شي چې پوه شي چې (ث) تلفظ شوه.

د ﴿فِيهِمْ رَسُولاً﴾ په کلمه کې شفوي اظهار دی کله چې د (م – ب) له تورو پرته بل توری راشي اظهار شفوي کیږي. له لوست څخه بهر مثالونه: ﴿وَجَعَلْنَا لَهُمْ أَزْوَاجًا، مِن قَبْلِهِمْ فَلِلّهِ، بِإِذْنِ رَبِّهِمْ إِلَى صِرَاطِ، عْمَالُهُمْ، كَرَمَادٍ، لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ﴾.

د ﴿يَتْلُوا﴾ په کلمه کې الف چې د کلمې په پای کې راغلی، نه تلفظ کیږي. ددغې موضوع یادونه باید زده‌کوونکو ته وشي او له هغوی څخه غوښتنه وشي چې زاید «الفونه» په نورو کلمو کې په نښه کړي.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**کورنۍ دنده:**

ښاغلی ښوونکی د تکاثر سورت ۱ – ۲ آیتونو له زده کووکو څخه په یادو اوري، غلطي ورته اصلاح کوي او بیا دنده ورکوي چې دوه نور آیتونه ۳ – ۴ په سمه توګه په یادو زده کړي.

**پنځه ویشتم لوست**

**سرلیک: د بقرې سورت ۱۳۰ آیت تلاوت**

**مخ:۴۵**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست آیت له تلاوت سره مینه ولري.
- د ادغام توري وپېژني.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو څخه وروسته تېر لوست په یو زده کوونکي باندې لولي، بیا نوی لوست په پوره پاملرنې سره پیل کوي او د لوست آیت په زده‌کوونکو باندې لولي او هم زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هریو په خپل وار سره د لوست آیت د مخارجو په لحاظ ساتلو سره د کتاب له مخې ولولي. بیا د لوست د دریم پړاو کلمې د تختې پرمخ لیکي او په زده کوونکو یې مشق کوي.

**اړین معلومات:**

د لوست وروستۍ برخه په زده‌کوونکو باندې مشق شي او هم ور څخه وغوښتل شي چې ددغه جدول له کلمو څخه د ادغام او د لین مد قاعدې وپیژني که په پیژندلو یې ونه توانیدل یا ورته ستونزې وي، ښاغلی ښوونکی دې ورته تشریح کړي د ﴿مَن يَرْغَبُ﴾ په کلمه کې ادغام سره له غنې شتون لري.

د ﴿الصَّالِحِينَ﴾ کلمې د تلفظ په وخت کې زیار وایستل شي څو د (ص) توری مشدد ادا شي او د هغه د استعلا صفت پکې مراعات شي او هم د زده‌کوونکو ته وویل شي چې په دې کلمه کې عارض سکون مد دی، ځکه د مد له توری څخه وروسته سکون عارض شوی، دا مد په درې ډوله اداء کیږي:

۱. اوږد: اوږد والی د شپږو حرکتونو په اندازه.

۲. متوسط: د څلورو حرکتونو په اندازه.

۳. لنډ: لنډوالی د دوو حرکتونو په اندازه.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

## شپږ ویشتم لوست
## سرلیک: د بقرې سورت ۱۳۱ آیت تلاوت
**مخ:۴۷**
**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**
**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست آیت له تلاوت سره مینه ولري.
- د (ذ) توري مخرج درک کړي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو ځخه وروسته تېر لوست په یو زده کوونکي باندې لولي، بیا نوی لوست په پوره پاملرنې سره پیل کوي او د لوست آیت په زده‌کوونکو باندې لولي او هم زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هریو په خپل وار سره د لوست آیت د مخارجو په لحاظ ساتلو سره د کتاب له مخې ولولي. بیا د لوست د دریم پړاو کلمې د تختې پرمخ لیکي او په زده کوونکو یې مشق کوي.

**اړین معلومات:**

د ﴿إِذْ قَالَ﴾په کلمه کې کوښښ وشي چې د (ذ) توری له خپل مخرج ځخه ادا شي که څه هم پــه مخکــې لوستونو کې پرې رڼا اچول شوې وه او هم د (ق) په توري کې د استعلا صفت مراعات کړای شي چې ډک ولوستل شي. د ﴿رَبُّهُۥ﴾ په کلمه کې د صله کبرا مد شتون لري دا په هغه صورت کې واقع کیږي چې ضمیر د دوه حرکتونو تر منځ راشي. دغه مد د منفصل مد حکم لري.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

## اوه ویشتم لوست

## سرلیک: د بقرې سورت ۱۳۲ آیت تلاوت

**مخ:۴۸**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست آیت له تلاوت سره مینه ولري.
- شمسي لام وپیژني.
- د (ص) توری صحیح تلفظ کړای شي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو څخه وروسته تېر لوست په یو زده کوونکي باندې لولي، بیا نوی لوست په پوره پاملرنې سره پیل کوي او د لوست آیت په زده‌کوونکو باندې لولي او هم زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هریو په خپل وار سره د لوست آیت د مخارجو په لحاظ ساتلو سره د کتاب له مخې ولولي. بیا د لوست د دریم پړاو کلمې د تختې پرمخ لیکي او په زده کوونکو یې مشق کوي.

**اړین معلومات:**

د ﴿إِبْرَاهِيمُ﴾ په کلمه کې د (ه) په توري کې مد اصلي یا طبعي راغلی دی چې د دوو حرکتونو پـــه انـــدازه کش کیږي. د لوست په آیت کې د (ص) توری په دوه کلمو کې راغلی دی. په یوه ځای کې مشدد او په بل ځای کې ساکن راغلی. ددې توري د ادا او (تلفظ) په وخت کې کوښښ وشي چې د صفاتو لحاظ یې وساتل شی لکه: صفیر، استعلا، همس او اصمات.

ښاغلی ښوونکی له زده‌کوونکو څخه غواړي چې د لوست د آیتونو په کلمو کې لکه ﴿الدِّينَ﴾ شمســـي لام وپیژني او نورو ته یې بیان کړي.

او هم له زده‌کوونکو څخه وغواړي چې د مثلین وړوکي ادغام د لوست د آیت په ﴿وَأَنتُم مُّسْلِمُونَ﴾ کلمـــو کې وپیژني.

زده کوونکي د اللهﷻ په لفظ کې د (ل) ډک لوستل او په ﴿إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَى﴾ په کلمه کـــې د (ص) تـــوری تمرین کړي.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

## اته ویشتم لوست

## سرلیک: د بقرې سورت ۱۳۳ آیت تلاوت

**مخ: ۵۰**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست آیت له تلاوت سره مینه ولري
- شمسي لام وپیژني.
- د (ص) توری صحیح تلفظ کړای شي.
- د (ع) توری له خپل مخرج څخ صحیح ادا کړای شي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو څخه وروسته تېر لوست په یو زده کوونکي باندې لولي، بیا نوی لوست په پوره پاملرنې سره پیل کوي او د لوست آیت په زده‌کوونکو باندې لولي او هم زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هریو په خپل وار سره د لوست آیت د مخارجو په لحاظ ساتلو سره د کتاب له مخې ولولي. بیا د لوست د دریم پړاو کلمې د تختې پرمخ لیکي او په زده کوونکو یې مشق کوي.

**اړین معلومات:**

د ﴿مِن بَعْدِ﴾ په کلمه کې اقلاب دی ځکه له ساکن نون څخه وروسته د (ب) توری راغلی د نون ساکن او تنوین له څلورو احکامو څخه یو اقلاب دی. د لوست په څلورمه برخه کې د اقلاب له قاعدې پرته متصل مد هم د تمرین لپاره په نظر کې نیول شوی باید کوښښ وشي چې د مشق او تکرار په وخت کې ددغه مد حق ادا کړای شي.

د ﴿نَعْبُدُ﴾ په کلمه کې د (ع) توری راغلی چې حلقي توری دی باید د تلفظ په وخت کې کوښښ وشي چې له خپل مخرج څخه ادا شي.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی له زده‌کوونکو څخه د تکاثر سورت ۳ – ۴ آیتونه په یادو اوري او غلطـــي ورته اصلاح کوي. بیا ورته دنده ورکوي چې دوه نور آیتونه ۵ – ٦ په سمه توګه حفظ کړي.

**نهه وېشتم لوست**

**سرلیک: د بقرې سورت ۱۳۴ آیت تلاوت**

**مخ: ۵۲**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت سره مینه وښيي.
- ثنایا علیا او سفلیٰ غاښونه وپېژني.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو څخه وروسته تېر لوست په یو زده کوونکی باندې لولي، بیا نوی لوست په پوره پاملرنې سره پیل کوي او د لوست آیت په زده‌کوونکو باندې لولي او هم زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هریو په خپل وار سره د لوست آیت د مخارجو په لحاظ ساتلو سره د کتاب له مخې ولولي. بیا د لوست د دریم پړاو کلمې د تختې پرمخ لیکي او په زده کوونکو یې مشق کوي.

**اړین معلومات**

معلومه ده چې غاښونه په تلفظ او د اواز په پېدايښت کې مهم رول لري نو غوره ده چې زده کوونکي د غاښونو له شمېر او له نومونو سره بلد وي او په هکله یې معلومات ولري هر بالغ انسان د (۳۲) غاښونو لرونکی وي (۱٦) په لاندې ژامه کې او (۱٦) په پاس ژامه کې چې جمله (۳۲) غاښونه کېږي.

۴ مخامخ غاښونو ته ثنایا وایي دوه پاسنیو ته ثنایا علیا وایي، دوه لاندنیو ته ثنایا سفلی وایي، ددوی په څنگ کې څلور نور غاښونه دوه لاندې او دوه پاس شتون لري چې هغه د رباعیاتو په نوم یادېږي د رباعیاتو په څنگ کې د تېره سرو غاښونو په نامه دوه پاس او دوه په لاندې ژامه کې شتون لري. رباعیات هم ورته وایي. نور غاښونه که د الله ﷻ خوښه وي په نورو لوستونو کې به یې تشریح کړو.

د قلقلې توري له پنځو تورو څخه عبارت دي چې د (قطب جدٍ) په کلمه کې جمع شوي دي. کله چې له دغو پنځو تورو څخه یو د کلمې په پای کې راشي قلقله کبرا کیږي.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادی.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**دیرشم لوست**

**سرلیک: د بقرې سورت ۱۳۵ آیاتونو لوستل**

**مخ:۵۳**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست آیت سره مینه وښیي.
- انیاب غاښونه وپېژني.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو څخه وروسته تېر لوست په یو زده کوونکی باندې لولي بیا نوی لوست په پوره پاملرنې سره پیل کوي او د لوست آیت په زده‌کوونکو باندې لولي او هم زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هریو په خپل وار سره د لوست آیت د مخارجو په لحاظ ساتلو سره د کتاب له مخې ولولي. بیا د لوست د دریم پړاو کلمې د تختې پرمخ لیکي او په زده کوونکو یې مشق کوي.

**اړین معلومات**

د رباعیاتو غاښونو ترڅنګ څلور نور غاښونه موجود دی چې د انیاب په نامه یادېږي، دوه غاښونه په لانـــدې ژامه او دوه یې په پاس ژامه کې ځای لري. د انیاب غاښونو ترڅنګ څلور نور غاښونه شتون لري چې دوه په پاس ژامه او دوه په لاندې ژامه کې ځای لري چې د ضواحکو غاښونو په نوم یادېږي. د ضواحکو غاښـــونو ترڅنګ دولس (۱۲) نور غاښونه شتون لري چې شپږ په لاندې ژامه او شپږ په پاس ژامه کې ځای لري. دری په ښي طرف او دری په ګس طرف په دواړو ژامو کې شتون لري، دغو (۱۲) غاښونو ته طواحن ویلی شي. د طواحنو ترڅنګ څلور نور غاښونه شتون لري چې دوه په پاس ژامه او دوه په لاندې ژامه کې ځای لـــري دغو څلورو ته نواجذ وایي ټولو شلو (۲۰) غاښونو: ضواحک، طواحن او نواجذو ته اضراس وایي.

د ﴿حَنِيفًا﴾ کلمې په پای کې دوه زورونه شتون لري چې د وقف پرمهال دغه تنوین په الف بدلیږي. دغه کلمه په زده‌کوونکو باندې تمرین کړئ.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادی.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

## يوديرشم لوست
## سرليک: د بقرې سورت ۱۳٦ آيت تلاوت
## مخ:۵۵
## وخت: يو درسي ساعت ۴۵ دقيقې
## موخې: زده کوونکي بايد:

- د لوست آيت صحيح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آيت له تلاوت سره مينه ولري.
- د تجويد قواعد چې په مخکې لوست کې يې لوستلي، په دغه لوست کې مراعات کړي.

**د لوست لومړني فعاليتونه**

ښاغلی ښوونکی د لومړنيو موضوعاتو څخه وروسته تېر لوست په يوه زده کوونکي لولي. بيا نوی لوست پــه ډېر دقت سره پيل کوي، بيا له زده‌کوونکو څخه غواړي چې هر يو په خپل وار سره د لوست آيت د مخارجو په رعايتولو سره د کتاب له مخې تلاوت کړي.

**اړين معلومات**

هرکله چې د قلقلې له تورو څخه يو توری چې په ((قطبُ جدٍ)) کې جمع شوي په منځ د کلمې کـــې راشـــي صغرا قلقله کيږي. د ﴿قُولُواْ آمَنَّا﴾ په کلمه کې منفصل مد دی. منفصل مد هغه مد ته وايي چې د مد توری په يوه کلمه کې راغلی او سبب يې په بله کلمه کې وي، نو بايد کوښښ وشي چې ددغه مد حق ادا شي او دغه مد په ځو زده‌کوونکو باندې تکرار کړي.

د ﴿أُنزِلَ﴾ په کلمه کې نون ساکن دی، اخفاء کيږي. ځکه ساکن نون د (ز) توری تـــر شـــا پټيـــږي. لـــه زده‌کوونکو څخه بايد وپوښتل شي چې اخفاء په لغت کې څه ته وايي. له لغوي معنا څخـــه وروســـته پـــه اصطلاحي معنا پوه شي. بيا له يو زده کوونکي څخه وغواړي چې د اخفاء توری د تختې پرمخ وليکي او هم ورسره د تورو په ليکلو کې مرسته وکړي د ﴿إِسْمَاعِيلَ﴾ په کلمه کې د (م) په توري باندې اشباعي فتحه ده چې د يو يا دوه حرکتونو په اندازه کش کيږي او په دغه کلمه کې د قصر مد شتون لري ځکه له مد تـــوري څخه مخکې د (ی) حرکت کسره راغلې ده او دغه کسره د (ی) له جنس څخه ده.

بيا له يو زده کوونکي څخه وغواړي چې د مد توري بيان کړي او که ستونزه يـــې لرلـــه بايـــد لـــه نـــورو زده‌کوونکو څخه پوښتنه وکړي.

﴿ النَّبِيُّونَ﴾ په کلمه کې ښه دقت وشي چې ددې کلمې د شدونو حق ادا شي. بايد ووايو چې ددې کلمې په اول کې شمسي توري شتون لري. شمسي توري هغه توري دي چې ليکل کيږي خو لوستل کيږي نه بيا لـــه ځو زده‌کوونکو څخه غواړي چې په خپل ځای ودرېږي او دغه کلمه تلفظ کړي او له زده‌کوونکـــو څخـــه پوښتنه کوي چې شمسي لام له قمري لام سره څه توپير لري؟ که جواب يې ورکړ ډېر ښه او که ځواب يـــې ورنکړو، بايد ورته وښودل شي چې شمسي لام تلفظ کيږي نه او قمري لام تلفظ کيږي.

د ﴿مِن رَّبِّهِمْ﴾ په کلمه کې ادغام پرته له غنې شتون لري. له زده‌کوونکو څخه بايد پوښتنه وکړي چې څوک کولای شي ادغام تعريف کړي او هم د ادغام ډولونه بيان کړي د ﴿نُفَرِّقُ﴾ په کلمه کې د (ر) دوه تـــوري شتون لري اول توری ساکن دی د مخکني توري حکم اخلئ او د مخکني توري حرکت فتحه ده چې هغه د (ر) توري په اعتبار سره ډک لوستل کيږي. او د (ر) دويم توری باريک لوستل کيږي ځکه چې مکسور دی.

**د تدريس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادي.

**لوست د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته او تباشير وغيره...

**دوه دېرشم لوست**

**سرليک: د بقرې سورت ۱۳۷ آيت تلاوت**

**مخ:۵۷**

**وخت: يو درسي ساعت ۴۵ دقيقې**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- د لوست آيت صحيح تلاوت کړای شي.
- د لوست آيت سره مينه وښيي.
- د شفوي اخفاء توري وپيژني.

**د لوست لومړني فعاليتونه:**

له لومړنيو خبرو ځخه وروسته ښاغلی ښوونکی په يو زده‌کوونکوباندې تېر لوست لولي. بيا نوی لوست پــه ډير دقت سره پيل کوي او هم له ځو زده‌کوونکو ځخه غواړي چې د لوست آيت د مخارجو په رعايتولو سره د کتاب له مخې ولولي. او په دريمه برخه کې لوست په زده‌کوونکو باندې تمرين کړي.

**اړين معلومات**

د ﴿آمَنتُم بِهِ﴾ په کلمه کې شفوي اخفاء ده. ځکه له (م) توري ځخه وروسته د (ب) توری راغلی. بيا دې له ځو زده‌کوونکو ځخه وغوښتل شي چې په دغه کلمه تلفظ وکړي. بيا ورته وويل شي چې دغــه اخفـــاء د شونډو په واسطه راغلې، نو ځکه ورته شفوی اخفاء وايي.

د ﴿هُمْ فِي﴾ په کلمه کې شفوي اظهار دی.له زده‌کوونکو ځخه دې وغواړي چې په ساکن «م» پــه کــوم صورت کې شفوي اظهار کيږي. که پوه نشول، ورته دې واضح کړي چې په ټولو صورتونو کــې شــفوي اظهار کېږي پرته له هغه صورت ځخه چې وروسته ترې د (ب) توری نوي راغلي. د ﴿ شِقَاقٍ﴾ په کلمه کې د جايز وقف په اعتبار سره قلقله کبرا کيږي ځکه (ق) توری د کلمې په پای کې راغلی دی. ددې کلمې د تلفظ په وخت کې په لومړي (ق) کې ښه دقت وشي چې د استعلا صفت لحاظ وســاتل شــي يعنــې ډک ولوستل شي او هم د قلقلې توري په زده‌کوونکو باندې مشق کړي او له زده‌کوونکو ځخه پوښتنه وشي چې ځوک کولای شي د قلقلې توري بيان کړي.

د ﴿فَسَيَكْفِيكَهُمُ اللَّهُ﴾ په کلمه کې د الله ﷻ په لفظ کې (ل) ډک لوستل کيږي. ځکه مخکې حرکــت يــې ضمه دی. له يو زده کوونکي ځخه غواړي چې د تختې مخې ته راشي، پورته کلمه په دقت سره تکرار کړي. د لوست په وروستيو کلمو کې شمسي او قمري توري دواړه راغلي دي. بايد زده کوونکي يې وپيژنې او بيان يې کړي.

د چوکاټ په ځلورمه برخه کې د﴿بِمِثْلِ﴾په کلمه کې د (ث) توری دې په صحيح ډول له خپل مخرج ځخه ادا شي. مخرج يې د ژبې سر او د ثنايا عليا غاښونو سر دی کله چې د ژبې ځوکه د ثنايا عليا غاښونو له سر سره ولګيږي د (ث) توری اداکيږي.

بايد له زده‌کوونکو ځخه پوښتنه وشي چې ځوک کولای شي د (ث) مخرج بيان کړي.

**د تدريس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادي.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور...

**کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی له زده‌کوونکو ځخه د التکاثر سورت ۵ – ٦ آيتونه په يادو اوري تيروتنه ورته اصلاح کوي. بيا ورته دنده ورکوي چې دوه نور ۷ – ۸ آيتونه په يادو يادکړي.

## درى دېرشم لوست
## سرليک: د بقرې سورت ۱۳۸– ۱۳۹ آيتونو تلاوت
**مخ:۵۹**
**وخت: يو درسی ساعت ۴۵ دقيقې**
**موخې: زده کوونکي بايد:**
- د لوست آيتونه صحيح تلاوت کړای شي.
- د لوست له آيتونو سره مينه وښيي.
- د تجويد قواعد چې مخکې مو لوستلي، په دغه لوست کې مراعات کړي.

**د لوست لومړني فعاليتونه**

د لومړنيو خبرو له سرته رسولو څخه وروسته ښاغلی ښوونکی تېر لوست په يو زده کوونکي باندې لولي. بيا په نوي لوست پيل کوي. ډېر په دقت سره يې زده‌کوونکو ته لولي او څو زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې هريو په خپل وار سره د لوست آيتونه د مخارجو په رعايتولو سره د کتاب له مخې ولولي.

**اړين معلومات**

د ﴿صِبْغَةَ اللّهِ﴾ په کلمه کې د (ل) توری د الله‌ﷻ په لفظ کې ډک لوستل کيږي. ځکه مخکې ورڅخه فتحه راغلې ده. له زده‌کوونکو څخه بايد پوښتنه وشي چې په کوم حالت کې د الله‌ﷻ لفظ ډک لوستل کيږي؟ که جواب يې صحيح نه و، ښاغلی ښوونکی دې ورته لارښونه و کړي او د ﴿فِي اللّهِ﴾ په کلمه کې باريک لوستل کيږي ځکه د (ل) توري څخه وروسته د زير حرکت راغلی دي.

د ﴿وَمَنْ أَحْسَنُ﴾ په کلمه کې اظهار دی. ځکه د ساکن نون څخه وروسته د همزې توری راغلی. له يو زده کوونکي څخه دې وغوښتل شي چې د ټولګي مخې ته راشي او د اظهار توري د تختې پرمخ وليکي.د ﴿عَابِدونَ﴾ په کلمه کې آيت د وقف په اعتبار سره سکون عارضي مد دی ددې مد درې واړه حالات روا دي يعني طويل، وسط او قصر. په زده‌کوونکو باندې مشق شي اوزده‌کوونکو ته بايد وويل شي چې ددغه مد ادا کول يواځې تر قاري پورې اړه لري.د ﴿أَتُحَآجُّونَنَا﴾ په کلمه کې د مثقل مد دی هغه کلمه ده چې د مد توری او سبب يې چې سکون دی په دغه کلمه کې يوځای راغلي دي.

**مثقل مد:** هغې کلمې ته وايي چې د مد توری او سبب يې په يوه کلمه کې وي ددې مد حکم واجب دی. د متصل مد غوندې له يو حرکت څخه ترشپږو حرکتونو پورې کش کيږي. له څو زده‌کوونکو څخه دې وغوښتل شي چې هريو په خپل ځای کې ودريږي پورته کلمه دقيق تلفظ کړي. د ﴿رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ﴾ په کلمو کې دې کوښښ وشي چې د (ب) توری مشدد ادا کړي ﴿وَلَنَا أَعْمَالُنَا﴾ په کلمه کې منفصل مد دی: ځکه د مد توری په يوه کلمه کې او سبب يې په بله کلمه کې واقع شوی دی. له څو زده‌کوونکو څخه دې وغوښتل شي چې هريو دغه تلفظ او تعريف کړي او سبب يې په پورته کلمو کې و پېژني که ستونزه يې لرله، ورسره دې مرسته وشي.

د ﴿وَنَحْنُ﴾ په کلمه کې دې کوښښ وشي چې (ح) له خپل مخرج څخه چې د حلق منځ دی، ادا کړای شي او بيا دې څو زده‌کوونکو ته څو دقيقې وخت ورکړل شي چې د تجويد د قاعدو په اړه په خپلو منځو کې خبرې وکړي.

**د تدريس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادی.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور...

## څلور دېرشم لوست
## سرلیک: د بقرې سورت ۱۴۰ آیت لومړی برخې تلاوت
**مخ: ٦١**
**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**
**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت سره مینه پیدا کړي.
- په دې پوه شي چې (ر) توری په کوم حالت کې ډک لوستل کیږي.

**لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی د لومړنیو خبرو له سرته رسولو څخه وروسته تېر لوست په یو زده کوونکي باندې لولي. بیا په نوي لوست پیل کوي. او له څو نورو زده‌کوونکو څخه غواړي چې لوست په خپل وار سره د مخارجو په رعایتولو سره د کتاب له مخې ولولي او هم یې په زده‌کوونکو باندې تمرین کړي.

**اړین معلومات**

د ﴿أَمْ تَقُولُونَ﴾ په کلمه کې دوه مدونه راغلي چې یو طبعي او بل اصلي دی چې په دواړو واوونو کې شتون لري ځکه له دواړو تورو څخه مخکې ضمه راغلې چې ددوی له جنس څخه ده.

له څو زده‌کوونکو څخه دې پوښتنه وشي چې د مد توري کوم دي او په کوم حالت کې مدکیږي. همدارنګه په پورته کلمه کې شفوي اظهار کیږي. ځکه له ساکن (م) میم څخه وروسته د (ت) تـــوری راغلـــی دی د ﴿إِبْرَاهِيمَ﴾ په کلمه د (ب) په توري کې وړه قلقله کیږي ځکه د (ب) توری د کلمې په منځ کې ساکن واقع شوی. له یو زده کوونکي څخه دې وغوښتل شي چې د قلقلې توري (ق، ط، ب، ج، د) جدا جدا د تختـــې پرمخ ولیکي د ﴿وَيَعْقُوبَ﴾ په کلمه کې دې کوښښ وشي چې د (ع) توری له خپل مخرج څخه ادا کـــړي چې په همزه بدل نشي. دغه کلمه په زده‌کوونکو باندې د صحیح لوستلو په موخه د (ع) توری تکرار کړي.

د ﴿وَالأَسْبَاطَ﴾ په کلمه کې قمري لام راغلی او قمری لام لیکل کیږي او تلفظ پرې هم کیږي. د شمسي لام توری لیکل کیږي خو تلفظ پرې نه کیږي. د ﴿هُودًا﴾ په کلمه کې اظهار دی د (اَوْ) په کلمه کې د لین مـــد دی او د ﴿نَصَارَى﴾ په کلمه کې د (ص، ر) دواړه توري ډک لوستل کیږي.

او د (ی) توری چې د کلمې په پای کې راغلی، لیکل کیږي، خو لوستل کیږي نه.

**د تدریس لارې:** لوستل، پوښتنې او ځوابونه انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

## پنځه دېرشم لوست

## سرلیک: د بقرې سورت د ۱۴۰ آیت د دویمې برخې تلاوت

**مخ:۶۳**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست له آیت سره مینه وښیي.
- اخفاء تعریف کړای شي.

**لومړني فعالیتونه**

له لومړنیو خبرو او د یوه زده کوونکي په واسطه د تېر لوست له لوستلو څخه وروسته ښاغلی ښوونکی په نوي لوست پیل کوي. د لوست له لوستلو څخه وروسته زده‌کوونکو ته دنده ورکوي چې هریو په خپل وار سره لوست د مخارجو په رعایتولو سره د کتاب له مخې ولولي. بیا د تجوید قواعد په مفصل ډول تشریح کوي.

**اړین معلومات**

**اخفاء:** د اظهار له شپږو تورو او د ادغام له شپږو تورو او د اقلاب له یو توري څخه پرته نور ټول توري د اخفاء دي لکه: (ت، ث، ج، د، ذ، ز، س، ش، ص، ض، ط، ظ، ف، ق، ک). اخفاء په لغت کې پټولو ته وايي او د تجوید په اصطلاح کې د ساکن نون او تنوین پټول دي په هغه وخت کې چې له پورته (۱۵) ذکر شوو تورو پسې راشي د ﴿أَأَنتُمْ﴾ په کلمه کې اخفاء راغلې له یو زده کوونکي څخه باید وپوښتل شي چې په کوم توري کې اخفاء شوې ده.

د ﴿أَمِ اللَّهُ﴾ په کلمه کې د اللهﷻ په لفظ کې د (ل) توری باریک لوستل کیږي ځکه اللهﷻ د لفظ څخه مخکې توري باندې د کسرې حرکت راغلی دا هم باید په ځو زده‌کوونکو باندې تمرین کړي.

د ﴿وَمَنْ أَظْلَمُ﴾ په کلمه کې اظهار دی ځکه د ساکن نون څخه وروسته همزه راغلې ده. بیا دې له یو زده کوونکي وغوښتل شي چې په کوم توري کې اظهار شوی دی او همدارنګه ددغې کلمې د (ظ) په توری کې دې د استعلا صفت په نظر کې ونیول شي. د ﴿مِمَّن كَتَمَ﴾ په کلمه مثلین ادغام او اخفاء دواړه شتون لري.

د ﴿شَهَادَةً عِندَهُ﴾ په کلمو کې تنوین دی، اظهار کیږي او ساکن نون دی اخفاء کیږي. د ﴿بِغَافِلٍ﴾ په کلمه کې د (غ) توری ډک ادا شي. ژبه باید د تالو طرف ته میلان وکړي ترڅو د استعلا صفت په دغه توري کې رعایت شي له زده‌کوونکو څخه باید وپوښتل شي چې کوم توري ډک لوستل کیږي. که ځواب یې قانع کیدونکی وه ډیر ښه او که نه باید د استعلا شپږ توري ورته وښودل شي.

او د استعلا د تورو تلفظ د دغه لوست په کلماتو کې تمرین کړي.

**د تدریس لارې:** لوستل، پوښتنې او ځوابونه انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**شپږدېرشم لوست**

**سرلیک: د بقرې سورت ۱۴۱ آیت تلاوت**

**مخ:٦۴**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست له آیت سره مینه وښیي.
- د قلقلې توري و پېژني.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی د لومړنیو خبرو او د یو زده کوونکي په واسطه تیر لوست له لوستلو څخه وروسته په نـــوي لوست پیل کوي. بیا له څو زده‌کوونکو څخه غواړي چې هریو په خپل وار سره د لوست آیت د مخارجو په رعایتولو سره د کتاب له مخې ولولي.

**اړین معلومات**

د﴿كَسَبْتُمْ ﴾په کلمه کې صغرا (وړه) قلقله ده. ځکه د قلقلې توري د کلمې په منځ کې ساکن راغلی دی او هر کله چې د قلقلې له تورو څخه یو توری د کلمې په پای کې ساکن راشي لویه (کبرا) قلقله کیږي. قلقله په لغات کې ټکان ورکولو ته وایي او د تجوید د علم په اصطلاح کې د لاندې پنځه گونو تورو‌څخه یو توری په داسی حال کې چې ساکن وي په خپل مخرج کې هغه ته ټکان ورکول دي. چې ساکن وي په خپل مخـــرج کې وي. د قلقلې د تورو مجموعه (قطب جدٍ) (ق، ط، ب، ج، د) دی او له زده‌کوونکو څخه وغوښتل شي چې صغرا (وړه) قلقله په پورته کلمو کې په نښه کړي بیا د قلقلې څو مثالونه د قرآن کریم له آیتونـــو څخـــه د تختې پر مخ ولیکي او هم د قلقلې توري د څو زده‌کوونکو په واسطه نورو ته ور وپېژني. د ﴿وَلَكُم مَّا﴾ په کلمه کې صغیر (وړوکی) مثلین ادغام دی. ځکه (م) توری په بل (م) کې داخلیږي یا په بل عبارت مدغم توری ساکن او مدغم فیه متحرک وي د (ه) په کلمه کوښښ وشي چې له خپل مخرج څخه ادا شي چې مخرج یې د حلـــق وروستۍ برخه ده او که په ادا کولو کې کوښښ ونشي د (ه) پرځای به (ح) تلفظ شي. هریو زده کوونکی باید یوځلي پرې تلفظ وکړي که تلفظ یې صحیح نه و، ورباندې دې تکرار کړي. او هغه د (ع) توری چې د آیت له پاسه لیکل شوی وي، هغه د رکوع نښه ده او زده کوونکي ورباندې پوه کړي.

د ﴿كَانُواْ﴾ په کلمه کې دوه لنډ (قصر) مدونه راغلي الف ساکن مخکې حرکت یې له خپل جنس څخه، واو ساکن مخکې حرکت یې له خپل جنس څخه له یو زده کوونکي څخه پوښتنه وشي چې د (و) توري همجنس حرکت کوم دی.

د ﴿يَعْمَلُونَ﴾ او﴿عَمَّا﴾د کلمو تلفظ په وخت کې کوښښ وشي چې د (ع) توری له خپل مخرج څخه ادا کړي.

**د تدریس لارې:** لوستل، پوښتنې او ځوابونه انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسی نور...

## اووه دېرشم لوست

## سرليک: د بقرې سورت ۱۴۲ آيت تلاوت

**مخ:٦٦**

**وخت: يو درسي ساعت ۴۵ دقيقې**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- د لوست آيت په سمه توگه په يادو تلاوت کړای شي.
- د لوست له آيت سره مينه وښيي.
- د تکاثر سورت صحيح تلاوت کړای شي.

**يادونه**

داچې د تکاثر سورت د آيتونو حفظول د کورنۍ دندې تر سرليک لاندې په تېرو هفتو کې ختم شول، نو له ښاغلي ښوونکی څخه هيله من يو چې د نن ورځې د ناظره درس ترڅنگ د تکاثر سورت ټول آيتونه د حفظ د لوست په توگه د لاندې چوکات له ښوونو سره سم زده‌کوونکو ته وړاندې کړي. البته هغه آيتونـــه چـــې هغوی مخکې ياد کړي دي. ښاغلی ښوونکی کولای شي وروستني لوستونه د مراجعې د لوست پـــه توگـــه وړاندې کړي.

**اړين معلومات**

**د تکاثر سورت ژباړه:**

- تاسو د شتمنۍ په گټلو کې ډېرې زياتې ليوالتيا په غفلت کې اچولي ياست.
- تردې پورې چې په دې فکر کې قبرونو ته ورسيدئ.
- هيڅکله داسې نه ده ډير ژر به تاسې پوه شئ.
- بيا (واورئ) چې هيڅکله داسې نه ده ډېر ژر به تاسې پوه شئ.
- هيڅکله داسې نده که تاسې د باوري پوهې له مخې (ددې چلند په عاقبت) پوهيدلای (نو ستاسو به دا چلند نه و).
- تاسې به ارو مرو دوزخ وگورئ بيا (واورئ چې).
- تاسې به له ټينگ باور سره هغه وگورئ.
- بيا به ارو مرو په هغه ورځ له تاسې نه ددې نعمتونو په هکله ځواب وغوښتل شي.

**تفسير**

د مال اولاد مينه او د دنيا د اسبابو حرص انسان په غفلت کې اچوي او په زړه کې د الله ﷻ د محبـــت او د اخرت د فکر او سوچ لپاره ځای نه پاتی کيږي. هميشه انسان په دې فکر کې دی چې څنگه يې شتمني ډيره شي او تر مرگه په همدې غفلت کې لالهانده گرځي. کله چې قبر ته ځي، نو ورته به معلوميږي چې په ډيره سخته هيره او غفلت کې دی. په دې مبارکو آيتونو کې الله تعالی د انسان خيالونه او غفلت بد گڼلی او هـــم

انسان په دوزخ باندې تهديدوي. بايد انسان دې ټولو ته متوجه شي چې د الهي نعمتونو په هکله ورڅخه پوښتنه کيږي.

**د تدريس لارې:** لوستل، پوښتنې او ځوابونه انفرادی.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور...

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده‌کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | ښاغلی ښوونکی د حال احوال له پوښتلو او مقدماتي کړنو څخه وروسته د ټولګي فضا کنټرولوي او زده‌کوونکو ته وايي چې نن ورځ د تکاثر سورت له يادو تکرار کړي. | |
| ۲۵ دقيقې | او په خپله هم د تکاثر سورت په ډير دقت سره په يادو لولي. بيا له يوه يا دوو خوش آوازو زده‌کوونکو څخه غواړي چې دغه سورت ولولي او په عين وخت کې نورو زده‌کوونکو ته متوجه وي چې تلاوت ته غوږ ونيسي او که نه بيا ښاغلی ښوونکی د دغه سورت آيت لولي او له زده‌کوونکو څخه غواړي چې په مناسب اواز يې تکرار کړي.<br>بيا زده‌کوونکو ته څو دقيقې وخت ورکوي چې دغه آيتونه په پټه خوله له ځان سره تکرار کړي. بياله هر زده کوونکي څخه څو آيتونه اوري او ورته لارښوونه کوي چې دغه آيتونه يوله بل څخه په يادو واوري. او دې ددغه مبارک سورت د ژباړې په هکله اړين معلومات وړاندې کوي. | دوه زده کوونکي دغه سورت په دقت سره په يادو لولي.<br>زده کوونکي دې دغه آيتونه له ځان سره تکرار کړي. |
| ۱۰ دقيقې | **زده کوونکي په لاندې پوښتنو سره ارزوي:**<br>۱. څوک کولای شي د سورت د لومړنۍ برخې درې آيتونه په حفظ سره ولولي؟<br>۲. څوک کولای شي وروسته درې آيتونه نور ولولي؟<br>۳. څوک کولای شي پنځه آيتونه نور په حفظ سره تلاوت کړي؟<br>۴. څوک کولای شي مکمل سورت په حفظ سره تلاوت کړي؟ | زده کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته سم ځواب ووايي. |

## اته دېرشم لوست

## سرلیک: د بقرې سورت ۱۴۳ آیت د لومړۍ برخې تلاوت

**مخ:۶۸**

**وخت: یو درسی ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت سره مینه وښيي.
- د لوست په کلماتو او د تجوید په قاعدو ښه پوه شي.
- د متصل مد د کشولو په اندازه پوه شي.

**د لوست لومړنۍ فعالیتونه**

د لومړنیو خبرو له سرته رسولو څخه وروسته یو زده کوونکی تېر لوست لولي. بیا ښاغلی ښوونکی پـــه نـــوي لوست پیل کوي ډېر په دقت سره یې زده‌کوونکو ته لولي. او څو زده‌کوونکو ته لارښونه کوي چې هریو په خپل وار سره د تورو د مخارجو په لحاظ ساتلوسره لوست د کتاب له مخې ولولي.

**اړین معلومات**

د ﴿وَكَذَٰلِكَ﴾ په کلمه کې د (ذ) توري د تلفظ په وخت کې دقت وشي چې له خپل مخرج څخه ادا شي چـــې مخرج یې د ژبې سر او د ثنایا علیا غاښونو سر دی او له زده‌کوونکو څخه پوښتنه وشي چې د (ذ) توری له کوم توري سره شریک مخرج لري. د ﴿أُمَّةً وَسَطًا لِّتَكُونُواْ﴾ په کلمه کې ادغام سره له غنې او پرته له غنـــې څخـــه راغلی. هریو دې د زده‌کوونکو په واسطه و پېژندل شي. که چېرې هغوی یې په پېژندلو قادر نشول، ښـــوونکی دې ورته په نښه کړي.

د ﴿شُهَدَاءَ﴾ په کلمه کې متصل مد راغلی ځکه د مد توری او د هغه سبب په یوه کلمه کې جمع شـــوي دي د ټولګي د وروستۍ برخې له زده‌کوونکو څخه پوښتنه وشي چې متصل مد کوم مد ته ویلی شي. د ﴿الرَّسُولُ﴾ په کلمه کې شمسي لام دی، تلفظ یې نه کېږي. ځکه د شمسي لام څخه وروسته د (ر) توری شتون لـــري او د (ر) توری د شمسي تورو څخه دی زده کوونکي باید په دوه ډلو وویشل شي. یوه ډله به شمسي توري او بله ډله به قمري توري له ځان سره ولیکي او غلطي به یې اصلاح کړي.

د ﴿الْقِبْلَةَ﴾ په کلمه کې قمري لام راغلی. د ﴿كُنتَ﴾ په کلمه کې اخفاء دی. ځکه د نون ساکن څخه وروسته د (ت) توری راغلی د ﴿عَلَيْهَا إِلاَّ﴾ په کلمه کې منفصل مد راغلی، ځکه د مد توری په یوه کلمه کې او سبب یې په بله کلمه کې راغلی دی د ﴿مِمَّن يَنقَلِبُ﴾ په کلمه کې ادغام سره له غنې دی. له یو زده کوونکي څخه بایـــد وغوښتل شي چې ادغام سره له غنې توري بیان کړي او د غنې مخرج ښکاره کړي د ﴿عَقِبَيْهِ﴾ په کلمه کـــې کوښښ وشي چې (ع) توری دقیق له خپل مخرج څخه ادا شي او هم په دغه کلمه کې د لین مد شتون لري ځکه د مد توری ساکن او مخکې حرکت فتحه ده.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

## نهه دېرشم لوست

## سرلیک: د بقرې سورت ۱۴۳ آیت د دویمې برخې تلاوت

**مخ: ۷۰**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست د آیت یوه برخه صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت سره مینه وښیي.
- د تجوید په قواعدو ښه وپوهېږي.
- اخفاء تعریف کړای شي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

د لومړنیو خبرو او د یو زده کوونکي په واسطه د تېر لوست له لوستلو څخه وروسته ښاغلی ښوونکی په نوي لوست پیل کوي. ډېر په دقت سره یې لولي، بیا له څو زده‌کوونکو څخه غواړي چې هریو په خپل وار سره د مخارجو په رعایتولو سره لوست د کتاب له مخې ولولي. د تجوید له قواعدو څخه وروسته لوست په مفصل ډول د زده‌کوونکو ته تشریح کوي.

**اړین معلومات**

د ﴿وَإِن كَانَتْ﴾ په کلمه کې اخفاء دی. ځکه له ساکن نون څخه وروسته (ک) راغلی دغه د (ک) توری د اخفاء له پنځلسو تورو څخه دی.

د ﴿لَكَبِيرَةً إِلاَّ﴾ په کلمه کې اظهار دی. ځکه له تنوین څخه وروسته دوه زورونه او د اظهار له شپږو تورو او یا د حلقې تورو څخه یو راغلی دی له څو زده‌کوونکو څخه وغوښتل شي چې اظهار تعریف کړي او هـــم د اظهار توري بیان کړي.

د ﴿هَدَى اللّهُ﴾ په کلمه کې د الله ﷻ په لفظ کې د (ل) توری ډک لوستل کیږي. ځکه مخکې ورڅخه فتحه راغلې کله چې د (ل) توري څخه مخکې فتحه یا ضمه راشي د الله ﷻ لفظ ډک لوستل کیږي او که ورڅخه مخکې کسره را شي بیا د الله ﷻ لفظ باریک لوستل کیږي. له زده‌کوونکو څخه باید وغوښتل شـــي چـــې څوک کولای شي د ﴿هَدَى اللّهُ﴾ له کلمې څخه پرته بل مثال راوړي.

د لوست د وروستۍ برخې کلمې باید په زده‌کوونکو باندې دقیق مشق کړای شـــي پـــه خاصـــه توگـــه د ﴿لِيُضِيعَ﴾. په کلمه کې د (ض) توری دقیق له مخرج خپل څخه د صفت په مراعات کولو سره ادا کړي.

او همدارنگه د (ع) توری دې له خپل مخرج څخه ادا شي چې مخرج یې د حلق منځ دی که چېرته لږ شان بې پروایي وشي د (ع) توری په همزه بدلیږي.

زده‌کوونکو ته باید وویل شي چې ادغام پرته له غنې له خیشوم څخه ادا کېږي.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

## څلوېښتم لوست

## سرلیک: د بقرې سورت ۱۴۴ آیت د لومړۍ برخې تلاوت

**مخ: ۷۲**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست د آیت یوه برخه صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له یوې برخې سره مینه وښيي.
- د «ث» توری دقیق له خپل مخرج څخه تلفظ کړای شي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی د لومړنیو خبرو او د یو زده کوونکی په واسطه د تېر لوست له لوستلو څخه وروسته په نوي لوست پیل کوي او په دقت سره یې لولي بیاله څو زده‌کوونکو څخه غواړي چې هریو په خپل وار سره لوست د مخارجو په رعایتولو سره د کتاب له مخې ولولي په لوست کې د تجوید قاعدې څنګه چې په مفصل ډول تشریح شوي زده‌کوونکوته تشریح کړي.

**اړین معلومات**

د ﴿قَدْ﴾ په کلمه کې د (ه) توری په خپل مخرج کې ټکان خوري یعني قلقله کیږي او د ﴿نَرَی﴾ توری ډک لوستل کیږي او د (ی) توری نه تلفظ کیږي له زده‌کوونکو څخه باید و پوښتل شي. چې څوک ویلی شي چې د (ی) توری ولې نه تلفظ کیږي که ځواب یې ورنکړه په ساده ډول ورته وویل شي ځکه چې حرکت نلري.

د ﴿فِي السَّمَاءِ﴾ کلمه کې متصل مد دی څلورو نه تر شپږ حرکتونو پورې کشکیږي باید حق یې ادا شي متصل مد هغه مد دی چې د مد توری او سبب یې په یوه کلمه کې راغلی وي. د ﴿فَلَنُوَلِّيَنَّكَ﴾ کلمه کې کوښښ وشي چې د ټولو تورو حق ادا شي په خاص ډول د شد د توري. د دې کلمې تلفظ نسبتاً سخت دی باید زده‌کوونکو باندې تکرار شي د ﴿حَيْثُ﴾ په کلمه دقت وشي چې د (ث) توری له خپل مخرج څخه چې مخرج یې ژبې څوکه او د ثنای علیا غاښونو سر دی ادا کړي په داسې ډول چې اوریدونکی پوه شي چې د (ث) توری دی بیا د څو زده کوونکي تلفظ کړي او نور د قضاوت وکړي.

د ﴿كُنتُمْ﴾ په کلمه کې اخفاء کیږي ځکه د ساکن نون څخه وروسته د (ت) توری راغلی دی او د (ت) توری له پنځلسو تورو د اخفاء څخه دی.

د صغرا قلقلې مثالونه پدغه لوست کې ﴿قِبْلَةً، وَجْهِكَ﴾

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادی.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**یوڅلویښتم لوست**

**سرلیک: د بقرې سورت ۱۴۴ آیت د دویمي برخې تلاوت**

**مخ:۷۴**

**وخت: یو درسی ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت سره مینه وښیي.
- د (ع) توري مخرج درک کړي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی د لومړنیو خبرو له سرته رسولو څخه وروسته له یو زده کوونکي څخه تېر لوست اوري، بیا په نوي لوست پیل کوي، ډیر په دقت سره یې لولي. بیا له زده‌کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل وار سره په خپل ځای کې ودرېږي، لوست د مخارجو په رعایتولو سره د کتاب له مخې ولولي او د تجوید قواعد، لکه: څنگه چې په لوست کې په مفصل ډول تشریح شوي زده‌کوونکو ته تشریح کړي.

**اړین معلومات**

د ﴿وَإِنَّ﴾ په کلمه کې د نون دوه توري موجود دي، یعنې چېرته چې مشدد وي په حقیقت کې هغه دوه توري دي. لومړی توری ساکن، دویم متحرک. د تلاوت په وخت کې کوښښ وشي چې د دواړو تورو حق ادا شي او په اصلي شکل سره ساکن نون او متحرک نون زده‌کوونکو ته د تختې پرمخ ولیکي.

د ﴿الَّذِينَ﴾ په کلمه کې د (ل) دوه توري شتون لري. همدارنگه په دې کلمه کې لنډ مد (قصر) یا مد اصلی چې د مد توری ساکن مخکې حرکت دده له جنس څخه وي دغه مد باید زده‌کوونکو ته وښودل شي.

د ﴿لَيَعْلَمُونَ﴾ په کلمه کې دې دقت وشي چې (ع) له خپل مخرج څخه ادا شي، چې مخرج یې د حلق وسط دی دغه کلمه دې په زده‌کوونکو باندې مشق شي. د ﴿مِن رَّبِّهِمْ﴾ په کلمه کې ادغام پرته له غنې څخه شتون لري ځکه د ساکن نون توري په مقابل کې (ر) راغلې او دغه د (ر) توری له ادغام پرته د غنې له تورو څخه دی.

له یوتن زده کوونکي څخه دې وپوښتل شي چې په کومو تورو کې ادغام پرته له غنې کیږي د ﴿وَمَا اللَّهُ﴾ په کلمه کې د (ل) توری په لفظ د الله ﷻ کې ډک لوستل کیږي ځکه مخکې ورڅخه مفتوح دی.

د ﴿بِغَافِلٍ عَمَّا﴾ په کلمه کې اظهار کیږي. ځکه د تنوین په مقابل کې (ع) توری راغلی او (ع) توری له شپږو تورو د اظهار څخه دی له یو تن زده کوونکي څخه دې وپوښتل شي چې د اظهار قاعده په پورته کلمه کې وپېژني.

**د تدریس لارې:** سوال او ځواب انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**دوه څلوېښتم لوست**

**سرلیک: د بقرې سورت ۱۴۵ آیت تلاوت**

**مخ:۷۵**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکی باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست آیت له تلاوت سره مینه ونیسي.
- د اقلاب توری وپېژني.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو څخه وروسته تېر لوست په یو زده کوونکي باندې لولي، بیا نوي لوست په پوره پاملرنې سره پیل کوي او د لوست آیت پر زده‌کوونکو باندې لولي او هم زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هریو په خپل وار سره د لوست آیت د مخارجو په لحاظ ساتلو سره د کتاب له مخې ولولي بیا د لوست دریم پړاو کلمې د تختې پرمخ لیکي او په زده کوونکو یې مشق کوي.

**اړین معلومات**

د ﴿وَلَئِنۡأَتَيۡتَ الَّذِينَ﴾ په کلمو کې اظهار کیږي، ځکه له ساکن نون څخه وروسته د همزې توری راغلی دی، له زده‌کوونکو څخه دې پوښتنه وشي چې څوک کولای شي ساکن نون په دغه کلمه کې عملاً اظهار کړي.
د ﴿آيَةٍ مَّا﴾ په کلمه کې ادغام سره له غنې دی، ځکه وروسته له تنوین څخه دوه زیرونه راغلي او وروسته ورڅخه د (م) توری دی چې د ادغام سره له غنې له تورو څخه یو توری دی. له زده‌کوونکو څخه دې پوښتنه وشي چې څوک کولای شي د ادغام سره له غنې توري بیان کړي.
د ﴿وَمَا أَنتَ﴾ په کلمه کې منفصل مد او اخفاء کیږي، زده کوونکي دې منفصل مد او اخفــاء وپېژنــي د ﴿وَمَا بَعۡضُهُم بِتَابِعٍ﴾ په کلمه کې د (م) توری شتون لري، شفوي اخفاء کیږي، ځکه وروسته د (م) له توري څخه (ب) راغلی. د (ع) توری باید دقیق له خپل مخرج څخه تلفظ شي چې د همزې له توري سره مشابهت پیدا نه کړي د ﴿مِّن بَعۡدِ﴾ په کلمه کې اقلاب دی ځکه له ساکن نون څخه وروسته د اقلاب توری راغلــی چې (ب) دی. اقلاب په لغت کې بدلولو ته وایي او د تجوید په اصطلاح کې بدلول د ساکن نون او تنــوین دي د (م) په توری باندې. ځکه د ساکن نون د پاسه د (م) توری په کوچنۍ بڼه لیکل شوی دی.
د ﴿جَاءَكَ﴾ په کلمه کې متصل مد دی ځکه د مد توری او سبب یې چې همزه ده په یوه کلمه کــې جمــع شوي. د ﴿إِذاً لَّمِنَ الظَّالِمِينَ﴾ په کلمه کې د (ذ) توري تنوین (دوه زوروونه) د (ل) په توري کې مدغم کیږي چې د «یرملون» له شپږو تورو څخه دی. په عین حال کې بیدار اوسئ چې د (ظ) توری د استعلا صفت سره ادا شي، یعنې ډک ولوستل شي، ترڅو یې د (ز) توري سره توپیر وشي.
د لوست په وروستۍ برخه کې دې له زده‌کوونکو څخه وغوښتل شي چې د تجوید قواعد بیان کــړي. کــه ستونزه یې لرله ورسره دې مرسته وشي.

**د تدریس لارې:** لوستل، سوال او ځواب انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**دری څلوېښتم لوست**

**سرلیک: بقرې سورت ۱۴۶ آیت تلاوت**

**مخ:۷۷**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت سره مینه وښیي.
- پوه شي چې د (ر) توری مکسور وي، باریک لوستل کیږي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی د لومړنیو خبرو له سرته رسولو څخه وروسته تېر لوست په یو زده کوونکي باندې لولي بیا نوی لوست په ډېر دقت سره پیلوي او زده‌کوونکو ته یې لولي، بیا له زده‌کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل وار سره په خپل ځای کې ودرېږي لوست د مخارجو په رعایتولو سره د کتاب له مخې ولولي.

که په لوست کې د تجوید قاعدې په مفصل ډول تشریح شوې بیا دې هم زده‌کوونکو ته تشریح کړي.

**اړین معلومات**

د ﴿الَّذِينَ﴾ په کلمه کې د کلمې لومړني توري په تلوار سره ادا کړئ هیڅ ډول درنګ پکې ونه کړئ، ځکه ټول د محجوره تورو څخه دي، یعنې په لوړ او څرګند ډول دې ادا شي. د جهر توري عبارت دي لــه (ب، ج، د، ذ، ر، ز، ض، ط، ظ، ع، غ، ق، ل، م، ن، و، ء، ی) زده‌کوونکو ته دې وویل شي چې جهر د حمس ضد دی، د حمس توري هغه دي چې په آرام ادا کیږي. د ﴿يَعْرِفُونَهُ﴾ په کلمه کې د (ر) توری باریک لوستل کیږي، ځکه چې مکسور دی او په دغه کلمه کې اصلی مد راغلی د مد توری (و) ساکن مخکینی حرکت د ده له جنس څخه دی، چې ضمه ده، دغه مد باید د زده‌کوونکو په واسطه وپېژندل شي. د ﴿أَبْنَــاءهُمْ﴾ پــه کلمه کې وړه قلقله کیږي.

ځکه د قلقلې توری چې (ب) دی د کلمې په منځ کې واقع شوی او هم په دغه کلمه کې متصل مد راغلــی دی. د ﴿فَرِيقاً مِّنْهُمْ﴾ په کلمه کې تنوین (دوه زورونه) راغلي د (م) په توري کې ادغام سره له غنې کیږي او د ساکن نون په وجه اظهار کیږي، ځکه له ساکن نون څخه وروسته (ه) راغلې. دغه (ه) د شپږ تورو د اظهار او حلقي تورو څخه دی. د ﴿ الْحَقَّ﴾ په کلمه کې دې کوښښ وشي چې د (ح) توری له خپل مخرج څخــه ادا شي او د (ه) له توري سره یې توپیر وشي، په زده‌کوونکو یې تکرار کړئ، ترڅو د هغوی تلفظ اصــلاح شي.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

## څلور څلوېښتم لوست

## سرليک: د بقرې سورت ۱۴۷–۱۴۸ آياتونو تلاوت

**مخ: ۷۹**

**وخت: يو درسی ساعت ۴۵ دقيقې**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- د لوست آيتونه صحيح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آيتونو سره مينه وښيي.
- شمسي او قمري لام وپېژني.

**د لوست لومړني فعاليتونه**

ښاغلی ښوونکی د لومړنيو خبرو له سرته رسولو څخه وروسته تېر لوست په يو زده کوونکې باندې لولي. بيا په نوي لوست پيل کوي او په دقت سره يې زده‌کوونکو ته لولي. او له زده‌کوونکو څخه غواړي چې هريـــو په خپل وار سره په خپل ځای ودريږي او د لوست آيتونه د مخارجو په رعايتولو سره د کتاب له مخې ولولي او د تجويد قاعدې څنگه چې تشريح شوې په مفصل ډول زده‌کوونکو ته تشريح کړي.

**اړين معلومات**

د ﴿الْحَقُّ﴾ په کلمه کې د (ق) دوه توري شته چې په اول کې وړه قلقله کيږي، ځکه ساکن دی دغه کلمـــه په زده‌کوونکو تکرار کړئ چې ټول زده کوونکي د (ق) او (ح) توري له خپل مخرج څخه تلفظ کړای شي هم د شد حق رعايت وکړي. ﴿مِن رَّبِّكَ﴾ په کلمه کې ادغام پرته له غنې څخه دی، ځکه له ساکن نون څخه وروسته د (ر) توری راغلی. له څو زده‌کوونکو څخه دې وغوښتل شي د نون ساکن په باره کې نظر ورکړي چې له کومې وجې ساکن نون خپل اواز له لاسه ورکوي او نه تلفظ کيږي.

د ﴿مِنَ الْمُمْتَرِينَ﴾ په کلمه کې لام قمري دی، ځکه وروسته ورڅخه (م) راغلی، زده کوونکي بايد پوه شـــي هغه لامونه چې په سر د کلمو کې راغلي په دوه ډوله دي ۱– لام قمري ۲– لام شمسي په هغو کلمو کـــې چې لام نه تلفظ کيږي هغې ته شمسي وايي او په هغو کلمو کې چې تلفظ کيږي هغې ته قمـــري وايـــي. د شمسي مثال لکه ﴿وَالصَّلاَةِ﴾ د قمري مثال ﴿مِنَ الْمُمْتَرِينَ﴾ په وروستني آيت کې د تجويد د قاعدې له قبيلې د ادغام سره له غنې، د قصر مد د جلاله د لفظ حکم اخفاء او داسې نور شـــتون لـــري. لـــومړی بايـــد د زده‌کوونکو له خوا وپېژندل شي، که زده‌کوونکو ستونزه لرله ورته دې تشريح کړي.

زده کوونکي دې په څلورو ډلو وويشل شي هرې ډلې ته دې دنده ورکړل شي چې د لوست آيتونه په خپـــل منځ کې ولولي او يو له بل څخه پوښتنه وکړي او هم ورسره مناسبه مرسته وکړي.

**د تدريس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور...

**پنځه څلوېښتم لوست**

**سرليک: د بقرې سورت ۱۴۹ آيت تلاوت**

**مخ: ۸۱**

**وخت: يو درسي ساعت ۴۵ دقيقې**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- د لوست آيت صحيح تلاوت کړای شي.
- د لوست له آيت سره مينه وښيي.
- د قلقلې توري وپېژني.

**د لوست لومړني فعاليتونه**

ښاغلی ښوونکی د لومړنيو خبرو له سرته رسولو څخه وروسته تېر لوست په يو زده کوونکي باندې لولي بيا نوی لوست په پوره پاملرنې سره زده‌کوونکو ته پيلوي. او له څو زده‌کوونکو څخه غواړي چې هريو په خپل وار سره د لوست آيت د مخارجو په رعايتولو سره د کتاب له مخې ولولي. او د تجويد قاعدې څنگه چې لاندې شرح شوې زده‌کوونکو ته تشريح کړي.

**اړين معلومات**

د ﴿وَجْهَكَ﴾ په کلمه ک وړه قلقله ده، ځکه د (ج) توری د کلمې په وسط کې راغلی او د (قطب جد) له تورو څخه دی. له زده‌کوونکو څخه بايد وپوښتل شي چې د قلقلې توري له کومو تورو څخه عبارت دي. او هم دې پوښتنه وشي چې قلقله په څو قسمه ده، که ځواب يې ورنه کړو بايد ورته وښودل شي. د صغرا قلقلې او د کبرا قلقلې څو مثالونه د تختې پرمخ ورته وليکل شي د ﴿الْحَرَامِ﴾ په کلمه کې د (ر) توری ډک لوستل کيږي. ځکه چې مفتوح ده او که مضموم وي هم ډک لوستل کيږي. که مکسوره وي باريکه لوستل کيږي، بايد څو مثالونه د ډک او باريک لوستلو ورته د تختې پرمخ وليکل شي او پرزده‌کوونکو باندې عملاً کار وشي.

دا چې د لوست آيت لنډ دی په ټولو زده‌کوونکو باندې په خپل وار سره تلاوت کړای شي، او تلفظ ته يې ښه پاملرنه وشي. زده‌کوونکو ته دې ووېل شي چې د (غ) توری د استعلا له تورو څخه دی. چې ددغه توري د تلفظ په وخت کې کوښښ وشي چې ډک ولوستل شي يعنې ژبه را ټوله او د پورته تالو طرف ته ميلان وکړي.

زده کوونکي دې د ادغام پرته له غنې څخه د اظهار او قلقلې مثالونه عملاً په دغه لوست کې تمرين کړي.

**د تدريس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادي.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور...

## شپږڅلوېښتم لوست

## سرلیک: د بقرې سورت ۱۵۰ آیت لومړی برخې تلاوت

**مخ:۸۳**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکی باید:**

- د اظهار توري وپېژني.
- د لوست د آیت یوه برخه صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت سره مینه وښيي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو څخه وروسته تېر لوست په یو زده کوونکي باندې لولي، بیا په نوي لوست پیل کوي. د لوست آیت په پوره پاملرنې سره په زده‌کوونکو باندې لولي او زده‌کوونکو ته وخت ورکــوي چې هر یو په خپل وار سره د لوست آیت د مخارجو په رعایتولو سره د کتاب له مخې ولولي بیا د لوست د دریم پړاو کلمې د تختې پرمخ ولیکي او په زده کوونکو یې مشق کړي.

**اړین معلومات**

د (ث) توري د تلفظ په وخت کې کوښښ وشي چې له خپل مخرج څخه ادا شي، ځکه کله د بې پروایۍ له امله د (ث) په ځای (س) تلفظ کیږي نو غوره ده چې پر زده‌کوونکو باندې (ث) ښه تکرار او مشق کـــړای شي او ورته وویل شي چې د ژبې څوکه د مخکني غاښونو له سر سره ولګیږي بیا د (ث) توری ادا کېږي.

د ﴿لِئَلاَّ﴾ په کلمه کې دې کوښښ وشي چې د ﴿لِئَلاَّ﴾ کلمه د الله ﷻ د نوم په شان تلفـــظ نشـــي او دواړه کلمې د تختې پرمخ ولیکل شي او ترمنځ یې توپیر ښکاره او واضح کړي، د مکمل آیت له تلاوت څخه پرته یوازې د ﴿ لِئَلاَّ﴾ کلمه په زده‌کوونکو تلفظ او مشق شي.

د ﴿وَمِنْ حَيْثُ﴾ په کلمه کې اظهار کیږي ځکه له ساکن نون څخه وروسته د (ح) توری راغلی چې د اظهار له شپږو تورو څخه دی.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب انفرادی.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**اووه څلويښتم لوست**

**سرليک: د بقرې سورت ۱۵۰ آيت د دويمې برخې تلاوت**

**مخ:۸۵**

**وخت: يو درسي ساعت ۴۵ دقيقې**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- د لوست د آيت يوه برخه صحيح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آيت له تلاوت سره مينه وښيي.
- د ح توری له خپل مخرج څخه صحيح تلفظ کړای شي.

**د لوست لومړني فعاليتونه**

ښاغلی ښوونکی د لومړنيو خبرو او د يو زده کوونکي په واسطه تېر لوست له لوستلو څخه وروسته په نوي لوست پيل کوي او په دقت سره يې زده‌کوونکو ته لولي. بيا له څو زده‌کوونکو څخه غواړي چې هر يو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي، لوست د مخارجو په رعايتولو سره د کتاب له مخې ولولي او د تجويد قواعد، څنګه چې شرح شوي، زده‌کوونکو ته يې شرح کړي.

**اړين معلومات**

د ﴿إِلاَّ الَّذِينَ﴾ په کلمه کې دې کوښښ وشي چې د ﴿إِلاَّ﴾ توری مشدد ادا کړي او که مشدد ادا نشي (الی) تلفظ کيږي نو په معنی کې هم تغير راځي.

د زده‌کوونکو د تلاوت په وخت کې متوجه اوسئ چې صحيح تلفظ پرې وکړئ. د ﴿ظَلَمُواْ﴾ په کلمه کې د (ظ) توری د استعلا په صفت سره ادا شي چې د (ز) په توري بدل نشي. ښاغلی ښوونکی دې له څو زده‌کوونکو څخه وغواړي چې هريو دغه کلمه تلفظ کړي.

د لوست په آيت کې د (ه) توری په څو کلمو کې راغلی دی، دغه توری له حلقي تورو څخه دی، مخرج يې د حلق وروستۍ برخه ده. زده کوونکي دې د تلاوت په وخت کې متوجه وي چې دغه توری له خپل مخرج څخه تلفظ او ادا کړي.

دغه توری د (ح) له توري سره نژدې مخرج لري. که ښه پام ورته ونشي د دواړو ترمنځ به توپير ونشي. د لوست آيت لنډ دی، بايد هر زده‌کوونکي ته د تلاوت وخت ورکړل شي او په عين وخت کې ورسره مرسته وشي.

په دغه لوست کې څلور ځايه شفوي اظهار راغلی چې عبارت دی له ﴿مِنْهُمْ فَلاَ تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِي وَلأُتِمَّ نِعْمَتِي عَلَيْكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ﴾.

**د تدريس لارې:** مطالعه سوال او ځواب انفرادی.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور...

**اته څلوېښتم لوست**

## سرلیک: د بقرې سورت ۱۵۱ آیت تلاوت

**مخ:۸۷**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت سره مینه وښیي.
- د تجوید احکام چې مخکې لوستلي و په دغه لوست کې مراعات کړای شي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

**ښاغلی ښوونکی په لومړي سرکې د زده‌کوونکو پاملرنه خپلو کتابونو ته راګرځوي، بیا په ډیر دقت سره مبارک آیت د تجوید د قواعدو په رعایتولو سره تلاوت کوي. بیا لوست په ټولو زده‌کوونکو لولي، غلطې ورته اصلاح کوي او له زده‌کوونکو څخه پوښتنه کوي، څوک کولای شي د نن ورځې لوست له کلمو څخه د تجوید احکام بیان کړي؟ بیا دې د زده‌کوونکوله ځواب څخه وروسته د مشکل په حل کولو کې ورسره مرسته وشي.**

**اړین معلومات**

**د ﴿كَمَا أَرْسَلْنَا﴾ په کلمه کې متصل مد راغلی دی، ځکه د مد توری په یوه کلمه کې او سبب د مد چې (ء) ده په بله کلمه کې راغلی ده.**

**د ﴿ رَسُولاً مِّنكُمْ﴾ په کلمه کې تنوین دوه زورونه راغلي، د (م) په توري کې ادغام سره له غنې کیږي، ځکه د (م) توری د (یمنو) له څلورو تورو څخه دی. د ﴿عَلَيْكُمْ﴾ په کلمه کې دې کوښښ وشي چې د (ع) توری په خپل مخرج کې ادا شي او د همزې په توري بدل نشي.**

**د ﴿وَيُعَلِّمُكُم مَّا﴾ په کلمه کې مثلین ادغام راغلی، ځکه له ساکن (م) څخه وروسته متحرک (م) راغلی دی، بیا دې زده کوونکي په څو ډلو وویشل شي او څو دقیقې وخت دې ورته ورکړل شي چې د تجوید د قواعدو په اړوند په خپلو منځو کې خبرې وکړي. که چېرته له کومې ستونزې سره مخامخ کیږي، ښاغلی ښوونکی ورته ستونزه حل کوي.**

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادی.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده ورکوي چې دوه آیتونه ۱ – ۲ د همزه له سورت څخه حفظ کړي.

**نهه څلویښتم لوست**

**سرلیک: د بقرې سورت ۱۵۲ – ۱۵۳ آیتونو تلاوت**

**مخ: ۸۹**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د جلاله په لفظ کې د «ل» له توري څخه مخکې د فتحې او یا ضمې حرکت دی ډک لوستل کیږي.
- د لوست آیتونه به صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست له آیتونو سره به مینه ونښيي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

د لوست مبارک آیت لومړی د ښاغلي ښوونکي له خوا تلاوت کیږي. بیا د تجوید له قاعدو ور پېژندلو څخه وروسته په زده‌کوونکو باندې تلاوت کوي او هم په چوکاټ کې دننه کلمو دریمه برخه تکرار وي.

ښاغلی ښوونکی لاندې کلمې د تختې پرمخ لیکي او احکام یې زده‌کوونکو ته بیانوي.

**اړین معلومات**

د ﴿فَاذْكُرُونِي﴾ په کلمه کې دې کوښښ وشي چې د (د) توری له خپل مخرج څخه ادا شي او مخرج یې د ژبې څوکه او د ثنایا علیا غاښونو سر دی او په عین وخت کې په دغه کلمه کې منفصل مدهم شتون لري، باید حق یې ادا شي. د ﴿أَذْكُرْكُمْ﴾ په کلمه کې د (ر) توری ډک لوستل کیږي ځکه د مخکني توري حکم اخلي مخکنی توری ضمه لري، نوځکه د دې کلمې د «م» په توري کې شفوي اظهار کیږي.

د ﴿تَكْفُرُونِ﴾ په کلمه کې د آیت د وقف په اعتبار سره عارض سکون مد کیږي، چې طول، وسط، اوقصر، درې واړه حالتونه جایز دي د ﴿بِالصَّبْرِ، الصَّلاَةِ، الصَّابِرِينَ﴾ د (ص) توری مشدد دی، د شد حق باید ادا شي او هم د استعلا صفت لحاظ وساتل شي، یعنی ډک ولوستل شي. باید د (س) له توري سره د تلاوت په وخت کې د دغه توري فرق وشي، د (ص) پرځای (س) تلفظ نشي د ﴿إِنَّ اللَّهَ﴾ په کلمه کې د الله جل جلاله لفظ ډک لوستل کیږي، ځکه مخکې توری باندې د فتحې حرکت شتون لري.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**پنځوسم لوست**

**سرليک: د بقرې سورت ۱۵۵-۱۵۴ آيت تلاوت**

**مخ: ۹۱**

**وخت: يو درسي ساعت ۴۵ دقيقې**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- د لوست آيتونه صحيح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آيتونو له تلاوت سره مينه وښيي.
- د قصر مد وپيژني.

**د لوست لومړني فعاليتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو د سرته رسولو څخه وروسته تېرلوست پر يو زده کوونکي باندې لولي، بيا پر نوي لوست پيل کوي، ډېر په دقت سره يې زده کوونکو ته لولي، او له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هريو په خپل وار سره په خپل ځای کې ودريږي او لوست د کلماتو د مخارجو په رعايتولو سره د کتاب له مخې ولولي. بيا د تجويد قاعدې لکه څنگه چې شرح شوې په مفصل ډول زده کوونکو ته شرح کړي.

**اړين معلومات**

د ﴿تَقُولُواْ﴾ په کلمه کې د قصر (لنډ مد) دوه ځلې تکرار شوی دی چې دغه مد ته اصلي مد هم ويلای شي، ځکه د مد توری (واو) ساکن دی او د مخه حرکت يې له جنس څخه (ضمه) دی. د ﴿ لِمَنْ يُقْتَلُ﴾ په کلمه کې ادغام سره له غنې دی، ځکه له ساکن نون څخه وروسته (ی) راغلې او (ی) د ادغام سره له غنې له تورو څخه يو توری دی بايد پر زده کوونکو باندې عملي اجرأ شي.

د ﴿سَبِيلِ اللّهِ﴾ په کلمه کې د لام توری په لفظ د الله ﷻ کې باريک لوستل کيږي، ځکه مخکې حرکت يې کسره ده. له يو زده کوونکي څخه دې پوښتنه وشي چې لفظ د الله ﷻ ډک لوستل کيږي او که باريک که چېرته يې سم ځواب ورنه کړای شو، بيا دې له څو نورو زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي، که هغوی هم سم ځواب ورنه کړای شو، بيا دې ښاغلی ښوونکی خپله ورته بيان کړي.

د ﴿أَحْيَاءٌ وَلَكِن لاَّ﴾ په کلمه کې ادغام سره له غنې او پرته له غنې څخه شتون لري، نو بايد کوښښ وشي چې د زده‌کوونکوله خوا وپيژندل شي اوکه ونه توانيدل ښوونکی دې ادغام سره له غنې او پرته له غنې ورته جدا جدا تشريح کړي. د ﴿وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ﴾ په کلمو کې قلقله صغرا او شفوي اخفاء ده. په لومړۍ کلمه کې د (ب) توري کې وړه قلقله کيږي، ځکه دغه د (ب) توری په منځ د کلمه کې شتون لري. دغه توری له پنځو تورو د (قطب جد) څخه دی او هم د (م) په توري کې شفوی اخفاء کيږي، ځکه وروسته ورڅخه د (ب) توری راغلی دی. د ﴿وَالأنفُسِ﴾ په کلمه کې نون ساکن دی اخفاء کيږي، ځکه وروسته له ساکن نون څخه د (ف) توری راغلی چې د اخفاء له پنځلسو تورو څخه دی.

**د تدريس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور...

## يوپنځوسم لوست

## سرليک: د بقرې سورت د ۱۵۷-۱۵٦ آيتونو تلاوت

**مخ:۹۳**

**وخت: يو درسي ساعت ۴۵ دقيقې**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- د لوست آيتونه صحيح تلاوت کړاى شي.
- د لوست له آيتونو سره مينه وښيي.
- د تجويد قواعد چې په مخکې لوستونو کې يې زده کړي، په دغه لوست کې تطبيق کړاي شي.

**د لوست لومړني فعاليتونه**

ښاغلى ښوونکى له مقدماتي خبرو څخه وروسته تېر لوست په يو زده کوونکى باندې لولي بيا پر نوي لوست پيل کوي. زده کوونکو ته يې ښه په دقت سره لولي. بيا له څو زده‌کوونکو څخه غواړي چې هريو په خپل وار سره په خپل ځاى کې ودريږي لوست د کتاب له مخې ولولي او هم د تجويد قواعد، څنگه چې شرح شوې، زده‌کوونکو ته په مفصل ډول شرح کړي.

**اړين معلومات**

د ﴿إِذَا أَصَابَتْهُم﴾ په کلمه کې منفصل مد راغلى، ځکه د مد توری په يوه کلمه او سبب يې (ء) په بله کلمه کې ده، د (ص) توری دې د استعلا له صفت سره ادا شي، يعنې ډک دې ولوستل شي چې د (س) توری سره يې فرق وشي همدارنگه د (ذ) توری دې له خپل مخرج څخه دقيق ادا شي چې د (ز) له توري سره يې توپير وشي. د (قالو) په کلمه کې د (ق) توری د (خص ضغط قظ) له تورو څخه دی بايد ډک ولوستل شي. زده‌کوونکو ته د زيات وضاحت په خاطر د استعلا توري جدا جدا د تختې پرمخ وليکي.

د ﴿رَاجِعونَ﴾ په کلمه کې د (ر) توری ډک لوستل کيږي. د ﴿أُولَـئِكَ﴾ په کلمه کې متصل مد دی يعنې د مد توری او سبب يې (ء) په يوه کلمه کې راغلي. د دې مد حکم واجب دی، څلور يا شپږ حرکتونو په اندازه کش کيږي. د ﴿صَلَوَاتٌ مِّن رَّبِّهِمْ﴾ په کلمو کې دوه ډوله ادغام راغلى، کوښښ دې وشي چې هريو يې د زده‌کوونکو له خوا راوپيژندل شي، که هغوی ونشو کړاى، ښاغلى ښوونکى دې مرسته ورسره وکړي.

د ﴿هُمُ الْمُهْتَدُونَ﴾ په کلمه کې د (ه) توری دې له خپل مخرج څخه دقيق ادا شي چې د (ح) توري سره يې توپير وشي. دغه توری له خپل مخرج څخه د صحيح تلفظ کولو په وجه پورته کلمې په زده‌کوونکو باندې مشق کړي.د لوست په وروستي برخه کې دې له زده‌کوونکو څخه د پورته قواعدو په هکله پوښتنې وشي که مشکل يې لرل ورسره دې مرسته وشي.

**د تدريس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادی.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور...

**دوه پنځوسم لوست**
**سرلیک: د بقرې سورت د ۱۵۸ آیت تلاوت**
**مخ:۹۵**
**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**
**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست له آیت سره خپله مینه وښيي.
- پوه شي چې د (ص) توری ډک لوستل کیږي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی د لومړنیو خبرو له سرته رسولو څخه وروسته پر یو زده کوونکي باندې تېرلوست لولي. بیا په نوي لوست پیل کوي، ډېر په دقت سره یې زده‌کوونکو ته لولي، او له څو زده‌کوونکو څخه غواړي چې هریو په خپل وار سره په خپل ځای کې ودریږي، لوست د مخارجو په رعایتولو سره د کتاب له مخې ولولي.بیا د تجوید قواعد په مفصل ډول، لکه څنګه چې شرح شوې زده‌کوونکو ته شرح کوي او په عملي ډول کلمات د تجوید د قاعدو مطابق تلفظ کوي.

**اړین معلومات**

د ﴿إِنَّ الصَّفَا﴾ په کلمه کې د (ن) او (ص) توري مشدد او ډک ادا کیږي. د ﴿وَالْمَرْوَةَ﴾ په کلمه کې د (ر) توری ډک لوستل کیږي، ځکه مخکې حرکت يې فتحه ده. قاعده داسې ده هرچېرته چې د (ر) توری ساکن وي، د مخکېني توري د حرکت حکم اخلي. که مخکنی حرکت مفتوح یا مضموم وي، د (ر) توری ډک لوستل کیږي او که د مخکېني توري حرکت مکسور وي باریک لوستل کیږي.

د ﴿ شَعَآئِرِ ﴾ په کلمه کې متصل مد دی. له یو زده کوونکي څخه دې پوښتنه وشي چې ولې پکې متصل مد راغلی دی.د ﴿ فَمَنْ حَجَّ ﴾ کلمه کې په ساکن نون کې اظهار کیږي، ځکه ورپسې د (ح) توری راغلی چې د اظهار له شپږو تورو څخه یو دی.

د ﴿أَن يَطَّوَّفَ﴾ په کلمه کې نون ساکن دی، ادغام سره له غنې کیږي په تلفظ کې دې کوښښ وشي چې د شدونو حق ادا شي.

د ﴿وَمَن تَطَوَّعَ﴾ کلمه کې ساکن نون کې اخفاء کیږي، ځکه له ساکن نون څخه وروسته (ت) راغلې او دغه د تا توری د اخفاء له پنځلسو تورو څخه یو توری دی.

د ﴿شَاكِرٌ﴾ په کلمه کې د تنوین دوه پیښنونه دي، اظهار کیږي، ځکه وروسته ورڅخه د (ع) توری د﴿عَلَيْهِمْ﴾په کلمه کې راغلی دی. د تلفظ په وخت کې دې ښه دقت وشي چې (ع) په (ء) بدل نشي او مشابهت هم پیدا نه کړي، دقیق له خپل مخرج څخه ادا شي.

له څو زده کوونکو څخه دې وغوښتل شي چې دغه کلمه تلفظ کړي.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**کورنی دنده:** ښاغلی ښوونکی له زده‌کوونکو څخه د همزه سورت ۱–۲ آیتونو په یادو اوري او غلطي ورته اصلاحکوي ۳–۴ آیتونو د یادولو دنده ورکوي.

## درې پنځوسم لوست

## سرلیک: د بقرې سورت ۱۵۹ آیت تلاوت

**مخ:۹۷**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت سره مینه وښیي.
- متصل مد او منفصل مد د لوست په کلماتو کې په نښه کړای شي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی د مقدماتي خبرو له سرته رسولو څخه وروسته تېر لوست په یو زده کوونکی باندې لولي، بیا په نوي لوست پیل کوي، ډېر په دقت سره یې زده‌کوونکو ته لولي، بیا د هغو زده‌کوونکو څخه غواړي، چې د لوست په فعالیتونو کې ونډه کمه اخلي، هر یو په خپل وار سره په خپل ځای کې ودرېږي، د لوست آیت د مخارجو په رعایتولو سره د کتاب له مخې ولولي. او د تجوید قاعدې لکه څنګه چې شرح شوې زده‌کوونکو ته یې شرح کړي او د لوست کلمات له قاعدو سره ورته تلفظ کړي.

**اړین معلومات**

د ﴿إِنَّ الَّذِينَ﴾ په کلمه کې دې کوښښ وشي چې د (ذ) توری له خپل مخرج څخه ادا کړي او زده‌کوونکو ته دې یادونه وشي چې د دغه توري مخرج د ژبې څوکه او د ثنایا علیا غاښونو سر دی. د تلاوت په وخت کې د بې پروایئ له امله کیدای شي د (ذ) په ځای (ز) تلفظ شي. بیا دې ښاغلی ښوونکی دغه تـــوری څـــو کرته پر ځینو زده‌کوونکو باندې تلفظ کړي.

د ﴿مَا أَنزَلْنَا﴾ په کلماتو کې منفصل مد او اخفاء راغلي دي، کوښښ دې وشي چې هره قاعده زده‌کوونکي وپېژني او که نه پوهیږي باید ور ویې پېژني، د ﴿مِنَ الْبَيِّنَاتِ﴾ په کلمه کې قمري لام دی (یعني) د دغې کلمې د (ل) توری لوستل کیږی ددې کلمې د تلفظ په وخت کې باید کوښښ وشي چې د (ی) توری مشدد ولوستل شي.

د ﴿مِن بَعْدِ﴾ په کلمه اقلاب دی، ځکه له ساکن نون څخه وروسته د (ب) توری راغلی، کله چې د تنوین او ساکن نون څخه وروسته د (ب) توری راشي ساکن نون او تنوین د (م) په توري بدلیږي.

د ﴿يَلعَنُهُمُ اللّهُ﴾ په کلمه کې د (ل) توری د الله ﷻ په لفظ کې ډک لوستل کیږي، ځکه مخکښې حرکت یې ضمه دی. دغه کلمه دې پر زده‌کوونکو باندې مشق شي او په مستقل ډول دې پرې تلفظ وشي.

د ﴿مَا أَنزَلْنَا﴾ په کلمه کې منفصل مد شتون لري. د مد توری په یوه کلمه کې او سبب یې چې (ء) دی پـــه بله کلمه کې راغلی دی. د ﴿أُولَـــئِكَ﴾ په کلمه کې متصل مد دی، ځکه د مد توری او سبب یې پـــه یـــوه کلمه کې راغلي دي.

**د تدریس لارې:**مطالعه، سوال او ځواب، انفرادی.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

## ځلور پنځوسم لوست
## سرلیک: د بقرې سورت د ۱۶۱-۱۶۰ آیتونو تلاوت
**مخ:۹۹**
**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**
**موخې: زده کوونکي باید:**
- د لوست آیتونه صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیتونو له تلاوت سره مینه وښیي.
- د اجمعین په کلمه قلقله صغرا وپېژني.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی د مقدماتي خبرو له سرته رسولو څخه وروسته تېر لوست پر یو زده کوونکي باندې لولي. بیا په نوي لوست پیل کوي، په ډېر دقت سره یې زده‌کوونکو ته لولي او له هغو زده‌کوونکو څخه غواړي، چې د ټولګي په فعالیتونو کې کمه برخه اخلي چې په خپل وار سره په خپل ځای کې ودرېږي لوست د مخارجو په رعایتولو سره د کتاب له مخې ولولي. بیا د تجوید قواعد زده‌کوونکو ته په مفصل ډول شرح کـړي او پـه عملي ډول کلمات د قواعدو مطابق تلفظ کړي.

**اړین معلومات**

د ﴿تَابُواْ﴾ په کلمه کې اصلي مد دی. د مد توری (و) ساکن او مخکنی حرکت یې ضمه له خپل جنس څخه دی. د مد توری او همجنس حرکت یې د تختې پرمخ لیکي. وروسته د یوتن زده کوونکي په واسـطه هـر توری د همجنس حرکت سره اشنا کړي.

د ﴿إِلاَّ الَّذِينَ﴾ په کلمه کې دې کوښښ وشي چې د (ل) توری مشدد ادا کړي او که د (الی الذین) په شـان یې ادا کړي، غلط دی. آن په معنی کې هم فرق راځي. د ﴿وَأَصْلَحُواْ وَبَيَّنُواْ﴾ په کلمو کې هغه الـف چـې وروسته د جمع واو څخه راشي نه، تلفظ کېږي. د ﴿وَأَنَا التَّوَّابُ الرَّحِيمُ﴾ د کلمو په اول کې شمسـي (ل) دی چې لیکل کیږي خو تلفظ کیږي نه البته د مشدد تورو حق باید ادا شي او د تلاوت په وخت کـې زده کوونکي هم متوجه کړو.

د ﴿كَفَرُوا﴾ په کلمه کې کوښښ وشي چې د تلفظ په وخت کې مشدد اداء نشي. دا تجربه شوې چې زیات زده کوونکي د (ف) توري ته د تلفظ په وخت کې شد ورکوي. دا غلطي ده، نو لهذا دغه کلمـه دې پـر زده‌کوونکو باندې مشق شي.

د ﴿وَالْمَلآئِكَـةِ﴾ په کلمه کې متصل مد دی. د تلاوت په وخت کې یې حق اداء کړئ له زده کوونکو څخه پوښتنه وشي چې دغه مد له څو حرکتو څخه ترڅو پورې کش کیږي. که صحیح ځواب یې ورنه کړای شو ښاغلی ښوونکی دې پخپله ورته تشریح کړي، د ځلورو حرکتو څخه تر پنځو پورې او د وقف په صـورت کې تر شپږو حرکتو پورې.

د ﴿أَجْمَعِينَ﴾ په کلمه کې د (ج) توری د کلمه په منځ کې راغلی صغرا قلقله پکې کېږي او هم پـه عـین وخت کې په دغه کلمه کې د آیت د وقف په اعتبار سره عارضي سکون مد دی.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**پنځه پنځوسم لوست**

**سرليک: د بقرې سورت د ۱۶۲–۱۶۳ آيتونو تلاوت**

**مخ:۱۰۱**

**وخت: يو درسي ساعت ۴۵ دقيقې**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- د لوست آيتونه صحيح تلاوت کړای شي.
- د لوست له آيتونو سره خپله مينه وښيي.
- د لوست په آيتونو کې اظهار، اخفاء، ادغام وښيي.

**د لوست لومړني فعاليتونه**

ښاغلی ښوونکی د مقدماتي خبرو له سرته رسولو څخه وروسته په يو زده کوونکي باندې تېر لوست لولي. بيا په نوي لوست پيل کوي، ډېر په دقت سره يې زده‌کوونکو ته لولي او له هغو زده‌کوونکو څخه چې په لوست کې يې کمه برخه اخستې وي غواړي چې هر يو په خپل وار سره په خپل ځای کې ودريږي، د لوست آيتونه د مخارجو په رعايتولو سره د کتاب له مخې ولولي، بيا د تجويد قواعد څنګه چې شرح شوي زده کوونکو ته يې شرح کړي. او کلمات د قاعدو مطابق تلفظ کړي.

**اړين معلومات**

د ﴿ خَالِدِينَ﴾ په کلمه کې دې کوښښ وشي چې د (خ) توری ډک ولوستل شي، ځکه (خ) د استعلا له تورو څخه يو توری دی، او ځکه د دغه توري د تلفظ په وخت کې ټوله ژبه د تالو طرف ته ميلان کوي. د استعلا ټول توري عبارت دي له (خص، ضغط، قظ) څخه بايد هميش د زده‌کوونکو تلاوت ته متوجه واوسي چې د تورو د صفاتو مراعات وکړي او که نه د هغوی د ښه بلدتيا په سبب غوره ده چې دغه کلمې (خالد، صادق، ضالين، غافل، طارق، قال، ظالم،) د تختې پرمخ وليکل شي.

د ﴿يُخَفَّفُ ﴾ په کلمه کې دې دقت وشي چې د (ف) په توري کې د شد حق ادا کړي غوره ده چې دغه کلمه ځانته په زده‌کوونکو باندې تمرين کړي. د ﴿عَنْهُمُ الْعَذَابُ ﴾ په کلمه کې نون ساکن دی، اظهار کيږي ځکه وروسته له ساکن نون څخه (ه) د حلقي تورو څخه راغلې دی.

د ﴿يُنظَرُونَ﴾ په کلمه کې ساکن نون دی، اخفاء کيږي، ځکه وروسته ورڅخه د (ظ) توری، چې د اخفاء له تورو څخه يو توری راغلی دی، د ﴿إِلَهٌ وَّاحِدٌ﴾ تنوين دوه پيښنونه دي. د (و) په توري کې ادغام سره له غنې کيږي او که په دغه کلمه کې وقف وشي د (د) توري کې قلقله کبرا کيږي، ځکه د کلمه په پای کې راغلی دی. د ﴿لاَّ إِلَهَ﴾ په کلمه کې منفصل مد دی.

**د تدريس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادی.

**مرستندويه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور...

## شپږپنځوسم لوست

## سرلیک: د بقرې سورت د ۱٦۴ آیت تلاوت

**مخ:۱۰۳**

**وخت: یو درسي ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت سره خپله مینه وښيي.
- د (ر) توری چې کله مفتوح یا مضموم وي، ډک لوستل کیږي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی له مقدماتي خبرو څخه وروسته تېر لوست په یو زده کوونکي باندې لولي، بیا پر نوي لوست پیل کوي، ډیر په دقت سره یې زده‌کوونکو ته لولي او زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هریو په خپل وار سره د لوست آیت د مخارجو په رعایتولو سره د کتاب له مخې ولولي او هم د تجوید قواعد په مفصل ډول څنګه چې شرح شوي، زده‌کوونکو ته تشریح کوي. د لوست کلمات په عملي توګه د قاعدو مطابق تلفظ او هم دریمه برخه په زده‌کوونکو باندې تمرین کوي.

**اړین معلومات**

د ﴿وَالأَرْضِ﴾ په کلمه کې د (ر) توری ډک لوستل کیږي، سره له دې چې ساکن دی، خو مخکښنی توری مفتوح دی. د ﴿وَاخْتِلاَفِ﴾ په کلمه کې له (و) څخه وروسته د وصل همزه ده چې نه تلفظ کیږي. د دغې کلمې د تلفظ په وخت کې دې کوښښ وشي چې د (خ) توری له خپل مخرج څخه ادا شي. له یو تن زده کوونکی څخه دې پوښتنه وشي چې د (خ) مخرج د خولې په کومه برخه کې شتون لري؟ که مشکل یې درلود له یوبل زده کوونکی څخه دې پوښتنه وکړي ترڅو ښکاره شي چې د دې توري مخرج حلق دی د ﴿تَجْرِي﴾ په کلمه کې د (ج) توری کې صغرا قلقله کیږي اود (ر) توری مکسور دی باریک لوستل کیږي. د ﴿يَنفَعُ﴾ په کلمه کې نون ساکن دی، اخفاء کیږي، ځکه وروسته ورڅخه د (ف) توری راغلی. د ﴿وَمَا أَنزَلَ اللّهُ ﴾ په کلمه کې منفصل مد او اخفاء دواړه دي، ځکه ساکن نون پکې دی او د (ل) توری په لفظ د الله ﷻ کې ډک لوستل کیږي، ځکه مخکې ورڅخه فتحه راغلې ده. د ﴿مِنَ السَّمَاء مِن مَّاء﴾ په کلمه کې متصل مد او ادغام سره له غنې کیږي. کوښښ دې وشي دغه دواړه قاعدې د زده‌کوونکو له خوا معرفي شي.د کلماتو هغه توري چې شدونه لري، په هغه طریقه باید ادا شي چې د شدونو حق یې ادا کړی وي د ﴿لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ﴾ په کلمه کې تنوین دوه زیرونه دي، د (ی) په توري کې ادغام سره له غنې کیږي ځکه د (ی) توری د ((ینمو)) له تورو څخه دی.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادی.

**مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی د همزه د سورت دریم او څلورم آیتونو په یادو اوریدلو څخه وروسته دنده ورکوي چې ۵ – ٦ آیتونه هم دقیق په یادو یاد کړي.

**اوه پنځوسم لوست**

**سرلیک: د بقرې سورت د ۱٦٥ آیت تلاوت**

**مخ:۱۰۵**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت سره مینه وښیي.
- ادغام سره له غنې او بې غنې ترمنځ توپیر وکړای شي.

**د لوست لومړنې فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی د مقدماتي خبرو له سرته رسولو څخه وروسته پر یو زده کوونکي باندې تېر لوست لولي. بیا په نوي لوست پیل کوي او په دقت سره یې زده‌کوونکو ته لولي او وخت ورکوي ترڅو هر یو په خپل وار سره په خپل ځای کې ودرېږي د لوست توري د مخارجو په رعایتولو سره د کتاب له مخې ولـــولي بیـــا د تجوید قاعدې څنگه چې په مفصل ډول شرح شوي زده‌کوونکو ته شرح کړي او په عملي توگه کلمـــات د قواعدو مطابق تلفظ کړي په دریمه برخه کې په زده‌کوونکو باندې تمرین کوي.

**اړین معلومات**

د ﴿وَمِنَ النَّاسِ﴾ په کلمه کې مثلین ادغام دی. د تلاوت په وخت کې باید په مشدد نون باندې لـــږ درنـــگ وشي. ادغام په لغت کې د داخلولو په معنا دی او د تجوید په اصطلاح کې د یو توري داخلول دي په بـــل توري کې، بیا دې له زده‌کوونکو څخه پوښتنه وشي چې ادغام په څو ډوله دی، که صحیح ځواب یې ونشو ویلای ورته دې شرح کړي.

د ﴿مَن يَتَّخِذُ﴾ په کلمه کې ساکن نون دی، ادغام سره له غنې کیږي. له زده‌کوونکو څخه پوښتنه وشي چې څوک ویلای شي د ادغام باغنه توري کوم دي؟ که نه پوهیدل بیا د هغه توري چې د «ینمو» په کلمه کـــې جمع شوي، د تختې پرمخ ولیکي. د ﴿مِن دُونِ اللّهِ أَندَاداً يُحِبُّونَهُمْ﴾ په کلمو کې اخفاء دی، د الله ﷻ په لفظ کې ادغام سره له غنې دی، د زده‌کوونکو په واسطه باید وپېژندل شي او که ستونزه یې لرلـــه ورســـره دې مرسته وشي.

د ﴿آمَنُواْ أَشَدُّ﴾ په کلمه کې منفصل مد دی. منفصل مد هغه دی چې توری یې په یوه کلمه کې وي او سبب یې چې (ء) ده په بله کلمه کې راغلې وي د ﴿حُبًّا لِّلّهِ﴾ په کلمه کې دې د شدونو حق ادا شي او همدارنگه ادغام پرته له غنې دلته شتون لري، له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وشي چې دلته کوم ادغام دی. د ﴿لِّلّهِ﴾ په کلمه کې د (ل) توری په لفظ د الله ﷻ باریک لوستل کیږي.

د ښې زده کړې لپاره دې د ترقیق څو مثالونه... د تختې پرمخ ولیکل شي. د ﴿الْعَذَابِ﴾ په کلمه کې د (ب) توری آیت د وقف په اعتبار سره ساکن کیږي، په دغه صورت کې قلقله کبراً کیږي، ځکه د (ب) تـــوری د کلمې په پای کې راغلی دی، نو باید کوښښ وشي چې د قلقلې تعریف د زده کوونکو لخوا ولوستل شي. که ستونزه یې لرله مرسته دې ورسره وشي.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادی.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**اته پنځوسم لوست**

## سرلیک: د بقرې سورت د ۱٦٦ آیت تلاوت

**مخ:۱۰۷**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت سره مینه وښیي.
- پوه شي چې مشدد توری کوم توري ته وایي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی د لومړنیو خبرو له سرته رسولو څخه وروسته پر یو زده کوونکي باندې تېر لوست لولي. بیا په نوي لوست پیل کوي، په دقت سره یې لولي، او زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هر یو په خپل وار سره د لوست آیت د تورو د مخارجو په رعایتولو سره د کتاب له مخې ولولي. او هم د لوست دریمه برخه کلمې په زده‌کوونکو باندې تمرین کړي په ځانګړې توګه د ﴿تَقَطَّعَتْ﴾ کلمه. دغه کلمه د زیات وضاحت په خاطر د تختې پرمخ ولیکل شي.

**اړین معلومات**

د (ذ) توری د ژبې سوکه د ثنایا علیاوو سر سره په تماس ورکولو رامنځ ته کیږي او همدا یې مخرج ګڼل کیږي، او دغه توری دې په زده‌کوونکو باندې په عملي توګه تلفظ شي او له هغوی څخه دې پوښتنه وشي چې کوم توری ورسره شریک مخرج لري؟ که سم ځواب یې ورنه کړه ورته دې سم ځواب وویل شي چې د (ث) توری ورسره شریک مخرج لري.

د ﴿إِذْ تَبَرَّأَ﴾ په کلمه کې دې کوښښ وشي چې د (ر) توری مشدد او ډک ادا کړي او دغه توری د څو تنو زده‌کوونکو باندې تکرار کړي.

هرکله چې د قلقلې توری د کلمې په پای کې راشي ساکن وي او یا د وقف په اعتبار سره ساکن کیږي، کبرا قلقله کیږي، لکه د ﴿الأَسْبَابُ﴾ په کلمه کې.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**نهه پنځوسم لوست**

**سرلیک: د بقرې سورت د ۱٦۷ آیت تلاوت**

**مخ:۱۰۹**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت سره مینه وښيي.
- پوه شي چې په کوم صورت کې د ساکن میم په توري کې شفوی اظهار کیږي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

ښوونکی د مقدماتي خبرو له سرته رسولو څخه وروسته تېر لوست په یو زده کوونکي باندې لولي، بیا په نوي لوست پیل کوي، په ډېر دقت سره یې زده‌کوونکو ته لولي. بیا یې په زده‌کوونکو باندې لولي او ورته وخت ورکوي چې هر یو په خپل وار سره په خپل ځای کې ودریږي، د لوست آیت د مخارجو په رعایتولو سره د کتاب له مخې ولولي. د لوست دریمه برخه د تختې پرمخ لیکي او پر زده‌کوونکو یې تمرین کوي.

**اړین معلومات**

د ﴿كَرَّةً﴾ په کلمه کې تنوین دوه زورونه شتون لري، اخفاء کیږي، ځکه په وړاندې یې د (ف) توری د ﴿فَنَتَبَرَّأَ﴾ په کلمه کې راغلی دی، نو دغه کلمه دې په څو زده‌کوونکو باندې تکرار کړي او ورته دې وواییي چې اخفاء په لغت کې د پټولو په معنی ده. د تجوید په اصطلاح کې د تنوین او ساکن نون پټول دي، کله چې د اخفاء له پنځلسو تورو څخه د یو توري پسې راشي، د ﴿ مِنْهُمْ ﴾ په کلمه کې نون ساکن دی، اظهار کیږي، ځکه په مقابل کې د (ه) توری راغلی او دغه توری د اظهار له شپږو تورو څخه یو توری دی، نو کوشش دې وکړي چې د اظهار توری په زده‌کوونکو باندې بیان کړي.

د ﴿أَعْمَالَهُمْ حَسَرَاتٍ﴾ په کلمه کې شفوي اظهار دی، ساکن (م) ښه ښکاره ادا کیږي، ځکه وروسته ورڅخه د (ح) توری راغلی دی. په ساکن (م) کې یوازې هغه وخت اخفاء کیږي چې وروسته ورڅخه د (ب) توری راغلی وي، زده‌کوونکو ته دې وویل شي چې په عربي ژبه کې شونډو ته شفة وايي. د ﴿وَمَا هُم بِخَارِجِينَ﴾ په کلمو کې (م) ساکن دی، شفوی اخفاء کیږي، ځکه وروسته ورڅخه د (ب)توری راغلی دی.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

## شپیتم لوست

## سرلیک: د بقرې سورت د ۱٦۸ آیت تلاوت

**مخ:۱۱۱**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت سره مینه وښيي.
- د شمسي لام او قمري لام ترمنځ توپير وکړای شي.

**لومړني فعالیتونه**

ښاغلی ښوونکی د لومړنیو خبرو له سرته رسولو څخه وروسته په نوي لوست پیل کوي. ډېر په دقت سره یې زده‌کوونکو ته لولي. بیا یې په دقیقه توګه په زده‌کوونکو باندې لولي، بیا ورته وخت ورکوي چې هر یو پــه خپل وار سره د لوست آیت د مخارجو په رعایتولو سره د کتاب له مخې ولولي د لوست د کلماتو دریمــه برخه د تختې پرمخ ولیکي او په زده‌کوونکو باندې مشق شي.

**اړین معلومات**

د ﴿الأَرْضِ﴾ په کلمه کې د (ر) توری ډک لوستل کیږي، یوازې د سکون په وخت کې د مخکېني تــوري حکم اخلي. په دغه کلمه کې له (ر) څخه مخکې توری همزه مفتوحه ده، نو ځکه د (ر) توری ډک لوســتل کیږي. له زده‌کوونکو څخه دې پوښتنه وشي چې په کوم وخت کې د (ر) توری باریک لوستل کیږي.

د ﴿حَلاَلاً﴾ په کلمه کې تنوین دی، اخفاء کیږي، ځکه وروسته ورڅخه (ط) توری د ﴿طَيِّباً﴾ په کلمه کــې راغلی او دغه توری د اخفاء له تورو څخه دی. د ﴿الشَّيْطَانِ﴾ په کلمه کې د (ش) توری مشدد دی بایــد د شد لحاظ یې وساتلی شي او هم د تلفظ په وخت کې د تفشي صفت لحاظ وساتل شي. تفشي په لغت کــې خپرولو ته وایي او د تجوید په اصطلاح کې د (ش) توري د اداء په وخت کې د خولې په فضا کې د هوا او آواز خوریدنه ده. دغه صفت یوازې په همدې توري کې شتون لري. له زده‌کوونکو نه دې پوښتنه وشي چې د ﴿الشَّيْطَانِ﴾ په کلمه کې کوم لام راغلی، ایا تلفظ کیږي او که نه؟

د ﴿عَدُوٌّ مُّبِينٌ﴾ په کلمه کې ادغام سره له غنې دی، ځکه له تنوین څخه وروسته د (م) توری راغلی چې لــه ادغام سره د غنې له تورو څخه یو توری دی. له زده‌کوونکو څخه دې پوښتنه وشي او ورته دې وویل شــي چې ادغام څو توري لري او په څو ډوله دی. که سم ځواب یې ورنه کړ. ورته دې شرح کړای شي.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال، او ځواب انفرادي.

**مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی د همزه د سورت د ۵ او ٦ آیتونو د تلاوت له اوریــدلو څخــه وروســته زده‌کوونکو ته دنده ورکوي چې ۳ وروستي آیتونه (۷–۹) په سم ډول سره یاد کړي.

**یوشپیتم لوست**

## سرلیک: د بقرې سورت د ۱۷۰-۱۶۹ آیتونو تلاوت

**مخ:۱۱۳**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیتونه صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیتونو له تلاوت سره مینه وښیي.
- پوه شي چې د ﴿وَالْفَحْشَاء﴾ په کلمه کې کوم مد شتون لري.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

د لومړنیو خبرو له سرته رسولو څخه وروسته ښاغلی ښوونکی په نوي لوست پیل کوي او په دقت سره یې زده‌کوونکو ته لولي. بیا زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هریو په خپل وار سره د لوست آیتونه د مخارجو په رعایتولو سره د کتاب له مخې ولولي. او د کلماتو دریمه برخه د تختې پرمخ ولیکي او پر زده‌کوونکو دې مشق کړي.

**اړین معلومات**

د ﴿يَأْمُرُكُمْ﴾ په کلمه کې شفوي اخفاء کیږي، ځکه وروسته ورڅخه د (ب) توری راغلی دی. د ﴿بِالسُّوءِ﴾ په کلمه کې متصل مد دی، ځکه د مد توری (و) او سبب یې چې (ء) ده، په یوه کلمه کې جمع شوي دي له څو تنو زده‌کوونکو څخه باید په دې باره کې پوښتنې وشي. د مثال په ډول څوک کولای شي متصل مد تعریف کړي؟ څوک کولای شي د مد حق ادا کړي؟

د ﴿وَالْفَحْشَاء﴾ په کلمه کې هم متصل مد دی. د ﴿وَأَن تَقُولُواْ﴾ په کلمه کې اخفاء او طبعي مد شتون لري له زده‌کوونکو څخه پوښتنه وشي چې په دغه کلمه کې طبعي مدونه څو دي؟ د ﴿عَلَى اللّهِ﴾ په کلمه کې لفظ د الله جل جلاله په لفظ کې د (ل) توری ډک لوستل کیږي، ځکه مخکې ورڅخه فتحه راغلې ده. هرکله که د الله جل جلاله په لفظ کې د (ل) څخه مخکې کسره وي د الله جل جلاله لفظ باریک لوستل کیږي.

د باریک لوستلو حالت: د الله جل جلاله لفظ (بسم الله) دې د تختې پرمخ ولیکي زده‌کوونکو ته دې ور وپیژني.

د ﴿مَا أَنزَلَ﴾ په کلمه کې منفصل مد دی، ځکه د مد توری په یوه کلمه کې او سبب یې (ء) په بله کلمه کې راغلی. دغه کلمه دې د تختې پرمخ ولیکل شي. بیا دې له یو تن زده کوونکي څخه وغوښتل شي چې د ټولګي مخې ته راشي، د مد توری او سبب یې نورو زده‌کوونکو ته وښایي، په کومو کلمو کې چې د عین توری راغلی، باید ښه دقت وشي چې د عین توری له خپل مخرج څخه ادا شي او له (ء) سره هیڅ ډول مشابهت پیدا نکړي نو غوره ده چې د دغه توري د تلفظ په هکله زده‌کوونکو باندې نظري او عملي کار وکړای شي.

د ﴿شَيْئاً وَلاَ يَهْتَدُونَ﴾ په کلمه کې دوه ځیزونه په پام کې نیول شوي: ادغام سره له غنې او صحیح تلفظ کول د (ه) د توری چې له خپل مخرج څخه ادا شي او که لږ شانته بې پرواهي وشي د (ه) پرځای به (ح) تلفظ شي.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادی.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**دوه شپیتم لوست**

## سرلیک: د بقرې سورت د ۱۷۲-۱۷۱ آیتونو تلاوت

**مخ:۱۱۵**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیتونه صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست له آیتونو سره خپله مینه وښیي.
- د لوست په آیتونو کې د اقلاب، اخفاء، اظهار مثالونه په نښه کړای شي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

د لومړنیو خبرو له سرته رسولو څخه وروسته ښاغلی ښوونکی په نوي لوست پیل کوي او په دقت سره یې زده کوونکو ته لولي، وروسته یې زده کوونکي په ځیرلولي. بیا دې زده کوونکو ته وخت ورکړل شي چې هر یو په خپل وار سره د لوست آیتونه د مخارجو په رعایتولو سره د کتاب له مخې ولولي. د کلماتو دریمه برخه دې د تختې پرمخ ولیکي او پر زده کوونکو باندې دې مشق کړي.

**اړین معلومات**

د ﴿وَمَثَلُ الَّذِينَ﴾ په کلمو کې د (ذ، ثا) توري شریک مخرج لري، په دقیقه توګه دې له خپل مخرج څخه ادا شي او په عملي توګه دې زده کوونکي پوه کړای شي چې د دغه دوه توریو د تلفظ په وخت کې د ژبې څوکه لږ د ثنایا علیا غاښونو له سر سره لګیږي. د ﴿يَنْعِقُ﴾ په کلمه کې نون ساکن دی، اظهار کیږي. وروسته ورڅخه د (ع) توری راغلی چې له حلقي تورو څخه یو توری دی، له زده کوونکو څخه باید پوښتنه وشي چې د اظهار او حلقي تورو په منځ کې توپیر شته او که نه؟ که سم ځواب یې ونشو ویلای زده کوونکو ته دې وښایي چې دواړو تورو په منځ کې توپیر نشته، دواړه یو دي.

د ﴿دُعَاءً وَنِدَاءً﴾ په کلمو کې متصل مد او ادغام سره له غنې راغلی دي. لومړی باید د مد متصل او ادغام سره له غنې قاعدې زده کوونکي وپیژني. د ﴿صُمٌّ، بُكْمٌ، عُمْيٌ، فَهُمْ﴾ په کلمو کې د تجوید درې قاعدې شتون لري چې عبارت دي له اقلاب، اظهار، اخفاء څخه. په لومړي کلمه کې اقلاب دی، په دویمه کلمه کې اظهار دی، په دریمه کلمه کې اخفاء شتون لري. لومړی باید دغه کلمې زده کوونکي وپیژني.

د ﴿مِن طَيِّبَاتِ﴾ په کلمه کې نون ساکن دی، اخفاء کیږي. د (ی) توری باید مشدد ادا شي. د ﴿وَاشْكُرُواْ﴾ په کلمه کې د (ر) توری ډک لوستل کیږي. له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وشي چې د (ر) توری ولې ډک لوستل کیږي؟ که ځواب یې صحیح و، ډیر ښه او که صحیح نه و، ورته دې وښودل شي.

د ﴿إِن كُنتُمْ﴾ په کلمو کې دوه اخفاء ګانې دي د ﴿رَزَقْنَاكُمْ﴾ په کلمه کې د قاف په توري کې وړه قلقله کیږي. له زده کوونکوڅخه باید پوښتنه وشي چې څوک د قلقلې توري بیانولای شي؟ که بیان یې نشو کړای د (قطب جدٍ) توري دې ورته پر تخته ولیکي.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادی.

**مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**درې شپیتم لوست**

## سرلیک: د بقرې د سورت ۱۷۳ آیت تلاوت

**مخ:۱۱۷**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت سره مینه وښیي.
- پوه شي چې د ﴿إِنَّ اللَّهَ﴾ په کلمه کې د الله ﷻ لفظ ډک لوستل کیږي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

د لومړنیو خبرو له سرته رسولو څخه وروسته ښاغلی ښوونکی په نوي لوست پیل کوي او په دقت سره یې زده‌کوونکو ته لولي وروسته یې زده کوونکي لولي. بیا زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هر یو په خپل وار سره د لوست آیت د مخارجو په رعایتولو سره د کتاب له مخې ولولي او هم د لوست د کلماتو دریمه برخه د تختې پرمخ لیکي په زده‌کوونکو یې مشق کوي.

**اړین معلومات**

د ﴿حَرَّمَ﴾ په کلمه کې ظاهرً د (ر) یو توری راغلی، خو په حقیقت کې د (ر) دوه توري شتون چې یو توری ساکن او دویم متحرک دی. په کومه کلمه چې مشدد توری راشي، هغه یو توری نه، بلکې دوه توري دي. په دغه پورته کلمه کې د (ر) دوه توري دواړه ډک لوستل کیږي، ځکه ساکن توری د مخکني تـوري حکـم اخلي، نو دویم توری مفتوح دی. دغه قاعده زده‌کوونکو ته په ساده ژبه وښودل شي.

د ﴿وَالدَّمَ﴾ په کلمه کې شمسي لام دی، ځکه وروسته د (ل) څخه (د) راغلی، شمسی لام هغه دی چې لیکل کیږي، خو لوستل کیږي نه. د ﴿الْخِنزِيرِ﴾ په کلمه کې ساکن (ن) دی اخفاء کیږي ځکه وروسته ورڅخه د (ز) توری راغلی دی له زده‌کوونکو څخه باید پوښتنه وشي چې څوک کولای شي د اخفاء لس ۱۰ توري د تختې پرمخ ولیکي او باقي توري دې زده‌کوونکو په واسطه بیان کړي او هم یې د تختې پرمخ ولیکي.

د ﴿وَمَا أُهِلَّ﴾ په کلمه کې منفصل مد شتون لري ځکه د مد توری په یوه کلمه کې او سبب یې (ء) په بله کلمه کې راغلي دي. د مد توري او سبب یې د زده‌کوونکو له خوا وروپېژندل شي.

د ﴿فَمَنِ اضْطُرَّ﴾ په کلمه کې د استعلا صفت (ط، ض) لحاظ وساتل شي او په عین وخت کې د (ر) توری د تفخیم صفت مو له یادو ونه وځي او دغه کلمه په زده‌کوونکو باندې تمرین کړي. د ﴿إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ په کلمو کې د الله ﷻ د لفظ ډک لوستلو لحاظ باید وساتل شي او هم ادغام پرته له غنې څخه له نظر څخه ونه غورځول شي. لومړی باید ادغام پرته له غنې څخه زده‌کوونکي وپېژني.

د ﴿عَلَيْهِ﴾ کلمه په اعتبار د وقف سره د لین مد کیږي په زده‌کوونکو باندې په عملي ډول تمرین کړي او بیا ورڅخه پوښتنه وشي چې د لین توری په دغه کلمه کې کوم دی، که صحیح ځواب یې ورنه کړ، ښـوونکی دې موضوع ښکاره کړي او د لین توری (ی) دې ور وپېژني.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادی.

**مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**څلورشپېتم لوست**

**سرلیک: د بقرې سورت د ۱۷۴ آیت تلاوت**

**مخ:۱۱۹**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکی باید:**

- د لوست آیتونه صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیتونو له تلاوت سره مینه وښیي.
- طبعي مد وپېژني.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

د لومړنیو خبرو له سرته رسولو څخه وروسته ښاغلی ښوونکی په نوي لوست پیل کوي او په ځیر سره یې زده‌کوونکو ته لولي. بیا یې زده کوونکي په ځیر سره لولي او هم زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هر یو په خپل وار سره د لوست آیتونه د مخارجو په رعایتولو سره د کتاب له مخې ولولي بیا د کلماتو دریمه برخه د تختې پرمخ لیکي په زده‌کوونکو باندې یې مشق کوي.

**اړین معلومات**

د ﴿الَّذِينَ﴾په کلمه کې طبعي مد دی، ځکه (ی) توری ساکن او مخکې حرکت یې کسره د دوی له جنس څخه دی. له زده‌کوونکو څخه دې پوښتنه وشي، څوک کولای شي د مد توري نوم واخلي او دغه توری په کوم حالت کې مد کیږي؟ د ﴿يَكْتُمُونَ﴾ په کلمه کې هم طبعي مد دی، ځکه د مد توری (و) ساکن او مخکې حرکت یې ضمه له خپل جنس څخه ده دغه مد ته مد اصلی هم وایي د یو یا دوه حرکتونو په اندازه کش کیږي.

د ﴿يَشْتَرُونَ﴾ په کلمه کې د (ش) په توري کې د تفشي صفت په نظر کې ونیول شي او په عین وخت مد اصلي یا طبعي او د تفخیم صفت د (ر) په توري کې ملحوظ شي. زده‌کوونکو ته باید وویل شي د (ر) توری دوه حالته لري تفخیم یا ډک لوستل او ترقیق یعنی باریک لوستل. که د (ر) توری مضموم یا مفتوح وي، ډک لوستل کیږي او که مکسور وي باریک لوستل کیږي. د ﴿ثَمَنًا﴾ په کلمه کې دې (ث) توری دقیق له خپل مخرج څخه ادا شي چې د (س) توري سره یې توپیر وشي په دغه کلمه کې تنوین موجود دی، اخفاء کیږي ځکه وروسته ورڅخه د (ق) توری راغلی چې د اخفاء له پنځلسو ۱۵ تورو څخه یو توری دی. زده کوونکي باید په عملي توگه د (ث) توری تلفظ کړي.

د ﴿بُطُونِهِمْ﴾ په کلمه کې د (ط) توری ډک لوستل کیږي، په دغه کلمه کې (م) ساکن شفوي اظهار کیږي زده کوونکي باید پوه کړای شي چې ولې د (ط) توری ډک لوستل کیږي دا ځکه چې د استعلا له تورو څخه یو توری دی. ولې په (م) کې شفوي اظهار کیږي، ځکه وروسته ورڅخه د (ب) توری نه دی راغلی د ﴿يُزَكِّيهِمْ﴾ په کلمه کې د (ک) توری مشدد دی، د تلفظ په وخت کې باید د شد حق ادا شي، دغه کلمه پر زده‌کوونکو باندې مشق او تکرار کړي. د ﴿عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ په کلمه کې تنوین دوه پیښنونه شتون لري، اظهار کیږي او هم وروسته ورڅخه همزه راغلې. له زده‌کوونکو څخه دې پوښتنه وشي، څوک کولای شي د اظهار توري پر تخته ولیکي او بیان یې کړي.

زده کوونکی د تلاوت په وخت کې وقفونه په عملي توگه مراعات کړي.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**پنځه شپیتم لوست**

## سرلیک: د بقرې سورت د ۱۷۵ آیت تلاوت

**مخ:۱۲۱**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت سره مینه وښیي.
- په سم ډول د همزه سورت په یادو تلاوت کړای شي.

**یادونه**

دا چې د همزه سورت د آیتونو سپارل په تیرو اونیو کې د کورنۍ د ندې د سرلیک په توګه تمام شول ښاغلي ښوونکي څخه غواړو چې د نن ورځې ناظره لوست تر څنګ د همزه سورت ټول آیتونه د حفظ د لوست په توګه د لاندې چوکاټ د لارښونو مطابق زده‌کوونکو ته وړاندې کړي سره له دې چې هغوی دغــه آیتونــه مخکې حفظ کړي دي.

ښاغلی ښوونکی کولای شي وروستي لوستونه د بیا کتنې په توګه وړاندې کړي.

**د همزه سورت. ژباړه:** تباهي ده هر هغه چا لپاره چې مخامخ خلکو ته د پیغور ورکولو او «پسې شا» د بدیو کولو په عادت اخته دي.هغه چا چې مال جمع کړی دی او په شمار شمیرلو یې ابنبی دی.

هغه انګېري چې د هغه مال به هغه ته تلپاتې ژوند ورکړي.

هیڅکله داسې نه ده هغه به په تنې ونې کوونکي ځای کې وغورځول شي.

ته څه پوهیږې چې څه دی هغه تنې ونې کوونکی ځای.

د الله ﷻ اور ښه لمبه کړای شوی.

چې تر زړونو پورې به رسیږي.

هغه به ورباندې په خوریدو سر پوښ کړای شي.

په داسې حال کې چې هغه به په لوړو لوړو ستنو کې ایسار کړای شوي وي.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادی.

**مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده‌کوونکو کړنې |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د حال احوال له پوښتلو او د لومړنیو خبرو له سرته رسولو څخه وروسته د ټولګي نظم په خپل کنټرول کې راولي. | دوه زده کوونکي سورت په دقت سره په یادو لولي. |
| ۲۵ دقیقې | بیا زده‌کوونکو ته وایي چې نن ورځ د همزه سورت په حفظ سره تکرار او تمرین کړي. لومړی خپله مبارک سورت په پوره دقت سره په یادو لولي، بیا له یوه یا دوه خوش اوازه زده‌کوونکو څخه غواړي چې دغه مبارک سورت د تجوید د قواعدو رعایتولو سره په یادو تلاوت کړي او په عین وخت کې نورو زده‌کوونکو ته متوجه اوسي چې تلاوت ته غوږ نیسي او که نه. ښاغلی ښوونکی مبارک سورت آیت آیت لولي او زده‌کوونکو ته لارښونه کوي چې له هغه سره یې ورو ورو تکرار کړي.<br>بیا زده‌کوونکو ته وخت ورکوي او ورڅخه غواړي چې دغه آیتونه له خپل ځان سره په پټه خوله تلاوت کړي. او زده‌کوونکو ته لارښونه کوي چې هریو تن د همزه سورت د ښنګ ملګري ته په یادو واوروي او هم یې له هغوی څخه واوري او هم ددغه مبارک سورت د ژباړې په هکله زده‌کوونکوته تشریحات ورکړي. | مبارک آیتونه له خپل ځان سره تکرار وي. |
| ۱۰ دقیقې | زده کوونکي په لاندې پوښتنو وارزوي.<br>۱. څوک کولای شي د لوست دری لومړني آیتونه له یادو ولولي؟<br>۲. څوک کولای شي وروستي دری نور آیتونه له یادو ولولي؟<br>۳. څوک کولای شي پاتې دری نور آیتونه په یادو ولولي؟<br>۴. څوک کولای شي مکمل سورت په یادو ولولي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته سم ځواب وايي |

**شپږشپیتم لوست**

## سرلیک: د بقرې سورت د ۱۷۶ آیت تلاوت

**مخ:۱۲۲**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت سره مینه وښیي.
- د لوست په آیت کې د اقلاب مثال وښیي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

د لومړنیو خبرو له سرته رسولو څخه وروسته ښاغلی ښوونکی تېر لوست په یو زده کوونکی باندې لولي بیا په نوي لوست پیل کوي او په دقت سره یې زده‌کوونکو ته لولي او هم یې په زده کوونکي لولي. بیا زده‌کوونکو ته وخت ورکوي شي چې هر یو په خپل وار سره د لوست آیت د مخارجو په رعایتولو سره د کتاب له مخې ولولي او د کلماتو دریمه برخه د تختې پرمخ لیکي په زده‌کوونکو یې مشق کوي.

**اړین معلومات**

د ﴿ ذَلِكَ﴾ په کلمه کې د (ذ) توری باندې الف مقصوره راغلی چې د اصلي مد حکم لري. له زده‌کوونکو څخه دې پوښتنه وشي، هغه وړوکی الف چې د (ذ) توري په سر باندې راغلی، په کوم نامه یادوي. که ځواب یې قانع کوونکی وه ډېر ښه او که نه ورته دې وروپېژني. د ﴿ بِأَنَّ اللّهَ﴾ په کلمه کې د الله ﷻ لفظ ډک لوستل کیږي. له یو څو نورو زده‌کوونکو څخه دې پوښتنه وشي چې په نورو کومو حالتو کې د الله ﷻ لفظ ډک لوستل کیږي او په کوم حالت کې باریک لوستل کېږي. که صحیح ځواب یې ورنه کړو ورته دې تشریح کړي.

د ﴿نَزَّلَ﴾ په کلمه کې د (ز) توری مشدد دی، د تلفظ په وخت کې د شد حق د اداء کولو نه پرته د صفیر صفت ته یې هم پام لرنه وشي. غوره ده چې ښاغلی ښوونکی دغه کلمه د لوست د کلماتو له دریمې برخې سره تلفظ او تمرین کړي. صفیر هغه ښکلي اواز ته وایي چې د غاښونو له خالیگا څخه راوځي، دوه توري دغه صفت لري (ص، ز). د ﴿بِالْحَقِّ﴾ په کلمه کې د مطلق وقف په اعتبار سره کبرا قلقله کیږي. د تلاوت په وخت د زده‌کوونکو توجه دغې قاعدې طرف ته را واړوي.

د ﴿شِقَاقٍ بَعِيدٍ﴾ په کلمه کې دوه زیرونه (تنوین) شتون لري اقلاب کیږي. لهذا تنوین په (م) بدلیږي، له څو زده‌کوونکو څخه دې د اقلاب په هکله پوښتنه وشي که ستونزه یې لرله مرسته دې ورسره وشي.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادی.

**مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**اووه شپیتم لوست**

## سرلیک: د بقرې سورت د ۱۷۷ آیت د لومړۍ برخې تلاوت

**مخ:۱۲۴**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست د آیت اړونده برخه صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له اړونده برخې تلاوت سره مینه وښیي.
- پوه شي چې متصل مد ته ولې متصل مد وایي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

د لومړنیو خبرو له سرته رسولو څخه وروسته ښاغلی ښوونکی په نوي لوست پیل کوي او په دقت سره یې زده‌کوونکو ته لولي بیا وروسته یې زده کوونکي په ځیر سره لولي او هم زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې هر یو په خپل وار سره د لوست آیت د مخارجو په رعایتولو سره د کتاب له مخې ولولي بیا د کلماتو دریمه برخه د تختې پرمخ لیکي په زده‌کوونکو یې مشق کوي.

**اړین معلومات**

د ﴿أَن تُوَلُّواْ﴾ په کلمو کې اخفاء کیږي، ځکه له ساکن نون څخه وروسته د (ت) توری راغلی چې د اخفاء له پنځلسو تورو څخه دی.

د ﴿وُجُوهَكُمْ﴾ په کلمه کې طبعي مد شتون لري د زده‌کوونکو په واسطه دې وپېژندل شي. د ﴿الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ﴾ په کلمو کې د (ر) توری باریک لوستل کیږي، کوښښ دې وشي چې د باریک لوستلو علت زده‌کوونکي وپېژني او که ونه توانیدل ورته دې وښودل شي.

د ﴿مَنْ آمَنَ﴾ په کلمه کې ساکن نون شتون لري، اظهار کیږي ځکه وروسته ورڅخه حلقي توری راغلی دی.

د ﴿وَالْمَلآئِكَةِ﴾ په کلمه کې متصل مد دی، له زده‌کوونکو څخه دې وغوښتل شي چې دغه مد تعریف کړي که ځواب یې صحیح نه و، ښاغلی ښوونکی دې ورته تعریف کړي.

د ﴿وَالنَّبِيِّينَ﴾ په کلمه کې د (ی) په توري اشباعي کسره مشدد راغلې ده، کوښښ دې وشي چې د شدونو حق یې ادا شي.

**د تدریس لارې:** سوال او ځواب، انفرادی.

**مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**اته شپیتم لوست**

## سرلیک: د بقرې سورت د ۱۷۷ آیت د دویمې برخې تلاوت

**مخ:۱۲٦**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د قلقلې توري وپېژني.
- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت سره مینه وښیي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

د مقدماتي خبرو له سرته رسولو څخه وروسته ښاغلی ښوونکی تېر لوست د یو زده کوونکي په واسطه لولي. بیا نوی لوست په پوره دقت سره زده‌کوونکو ته لولي او ورته وخت ورکوي چې هریو په خپل وار ســـره د لوست آیت د مخارجو په رعایتولو سره د کتاب له مخې ولولي او د لوست کلمې د تختې پرمخ لیکي او په زده‌کوونکو یې تمرین کوي.

**اړین معلومات**

د ﴿الْمَالَ﴾ په کلمه کې قمري لام دی. له زده‌کوونکو څخه دې پوښتنه وشي چې قمري (ل) تلفظ کیږي او که نه؟ که صحیح ځواب یې ورنه کړ، ورته دې تشریح کړای شي.

د ﴿ذَوِي الْقُرْبَى﴾ په کلمه کې د (ی) توری نه تلفظ کیږي. زده‌کوونکو ته باید وویل شي، هغه توري چـــې حرکت نلري، د رسم خط په وجه لیکل کیږي، خو لوستل کیږي نه، غوره دا ده چې په هر لوست کې لــــه دغو تورو څخه یو توری زده‌کوونکو ته ور وپېژندل شي.

د ﴿الرِّقَابِ﴾ په کلمه کې کولای شي د (ب) په توري کې د وقف د علامې په وجه قلقله کبرا وکړي، ځکه د (ب) توری د قطب جد له پنځو تورو څخه دی.

د ﴿وَالسَّآئِلِينَ﴾ په کلمه کې متصل مد راغلی، ځکه د مد توری او سبب یې چې (ء) دی، په یوه کلمه کـــې راغلي دي.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادی

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**نهه شپیتم لوست**

## سرلیک: د بقرې سورت د ۱۷۷ آیت د دریمې برخې تلاوت

**مخ:۱۲۸**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- پوه شي چې د (ص) توری ډک لوستل کیږي.
- د لوست د آیت دریمه برخه صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت سره مینه وښیي.

**د لوست لومړني فعالیتونه**

د لومړنیو خبرو له سرته رسولو او د یو زده کوونکي په واسطه د تېر لوست له لوستلو څخه وروسته ښاغلی ښوونکی نوی لوست په پوره پاملرنې سره زده‌کوونکو ته لولي. وروسته نوی لوست پر زده‌کوونکوباندې په دقیق ډول لولي او زده‌کوونکو ته وخت ورکوي یې چې هر یو په خپل وار سره لوست د مخارجو په رعایتولو سره د کتاب له مخې ولولي. او د لوست د دریم پړاو کلمات د تختې پرمخ لیکي په زده‌کوونکو یې تمـــرین کوي.

**اړین معلومات**

د ﴿وَأَقَامَ الصَّلَاةَ﴾ په کلمه د (ص) توری ډک او مشدد ادا کیږي. **دغه توری د استعلا له اوو تورو څخه یو توری دی.** لومړی باید له زده‌کوونکو څخه پوښتنه وشي چې د (ص) توری له کومو تورو څخه دی، که سم ځواب یې ورنه کړو ښاغلی ښوونکی دې د استعلا توري چې (خ، ص، ض، غ، ط، ظ، ق) دي، د تختـــې پرمخ ولیکي او زده‌کوونکو ته دې وروپیژني.

د ﴿وَآتَى الزَّكَاةَ﴾ په کلمه کې د (ز) توری مشدد دی. د تلفظ په وخت کې دې کوښښ وشي چې د صفیر صفت لحاظ وساتل شي. د ﴿فِي الْبَأْسَاءِ وَالضَّرَّاءِ﴾ په کلمو کې متصل مد راغلی. دغه مد دې په زده‌کوونکو باندې مشق شي او هم دې ورڅخه پوښتنه وشي چې څوک کولای شي متصل مـــد تعریـــف کـــړی؟ کـــه زده‌کوونکو تعریف نشو کړای، ښاغلی ښوونکی دې ورته تعریف کړي. له زده‌کوونکو څخـــه دې پوښـــتنه وشي څوک کولای شي پرته له دغو پورته کلمو څخه په نورو کلمو کې متصل مد په نښه کړي.

﴿بِعَهْدِهِمْ إِذَا﴾ په کلمو کې شفوي اظهار دی، ځکه له (م) ساکن څخه وروسته د (ء) توری راغلی دی.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادی.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**اوپایم لوست**

## سرلیک: د قارعه سورت د ۱–۴ آیتونو حفظ

**مخ:۱۳۰**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د (ث) توری له خپل مخرج څخه دقیق تلفظ کړای شي.
- د لوست آیت صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت سره خپله مینه وښیي.

**اړین معلومات**

داچې چې زده‌کوونکو د لوست آیتونه له مخکې حفظ کړي، نو غوره ده چې ټول زده کوونکي په خپل وار سره د القارعه سورت څخه مقصودي آیتونه ۱–۴ پورې تلاوت کړي که غلطي شتون درلـــود، ورتـــه دې اصلاح کړي.

د (ق) توری له مستعلیه تورو څخه دی، باید ډک ادا شي. د (ة) مدوره توری د وقف په حالت کې د (هـــ) پر توري بدلیږي. د تلاوت په وخت کې دې کوښښ وشي چې داسې ادا شي چې اوریدونکي پوه شي چـــې (هـــ) یې تلفظ کړه.

- د ﴿وَمَا أَدْرَاكَ﴾ په کلمو کې منفصل مد راغلی، ځکه د مد توری په یوه کلمه راغلی او سبب د مد په بله کلمه کې، دغه مد د څلورو یا پنځو حرکتونو په اندازه کش کیږي.
- د ﴿كَالْفَرَاشِ﴾ په کلمه کې د (ر) توری ډک ادا کیږي.
- د ﴿ الْمَبْثُوثِ﴾ په کلمه کې د (ث) توری دې له خپل مخرج څخه دقیق ادا شي چې د (س) له توري سره یې توپیر وشي.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**يو اويايم لوست**

**سرليک: د القارعه سورت د ۵–۷ آيتونو حفظ**

**مخ: ۱۳۱**

**وخت: يو درسي ساعت ۴۵ دقيقې**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- پوه شي چې قمري لام ليکل کيږي او هم تلفظ پرې کيږي.
- د لوست آيتونه صحيح تلاوت کړای شي.
- د لوست له آيتونو سره مينه وښيي.

**اړين معلومات**

دا چې زده‌کوونکو د لوست آيتونه مخکې حفظ کړي دي، غوره ده چې ټول زده کوونکي په خپل وار سره د القارعه سورت ځخه مقصودي ۵–۷ آيتونه تلاوت کړي که غلطي شتون لرلو ورته د اصلاح کړي.

- د ﴿وَتَكُونُ﴾ په کلمه کې طبعي مد شتون لري، ځکه د مد توری (و) ساکن او مخکې حرکت يې ضمه د دوی له جنس ځخه راغلې ده.
- د ﴿الْجِبَالُ﴾ په کلمه کې قمري لام شتون لري چې هم ليکل کيږي او هم تلفظ کيږي.
- د ﴿الْمَنفُوشِ﴾ په کلمه کې اخفاء کيږي ځکه له ساکن نون ځخه وروسته د (ف) توری، چې د اخفاء له پنځلسو تورو ځخه دی.
- د ﴿مَن ثَقُلَتْ﴾په کلمه کې هم اخفاء شتون لري.
- د ﴿عِيشَةٍ رَّاضِيَةٍ﴾ په کلمه کې ادغام پرته له غنې دی.

**د تدريس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور...

**دوه اویایم لوست**

**سرلیک: د القارعه د سورت د ۸–۱۱ آیتونو حفظ**

**مخ:۱۳۲**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي به:**

- د اظهار توری معرفي کړای شي.
- د لوست آیتونه صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیتونو له تلاوت سره مینه وښيي.

**اړین معلومات**

داچې زده‌کوونکو د لوست آیتونه له مخکې حفظ کړي، غوره ده چې هر یو زده کوونکی په خپل وار سره د لوست ټاکلي آیتونه ۸–۱۱ د القارعه له سورت څخه تلاوت کړي. که غلطي شتون لرلو ورتـــه د اصـــلاح کړي.

- د ﴿مَنْ خَفَّتْ﴾ په کلمو کې اظهار کیږي، ځکه د ساکن نون څخه وروسته د (خ) توری راغلی او د (خ) توری له حلقي یا د اظهار له تورو څخه دی.
- د ﴿مَوَازِينُهُ﴾ په کلمه کې طبعي مد دی، ځکه د (ی) توری ساکن او مخکې حرکت یې کسره ددي له جنس څخه ده.
- د ﴿نَارٌ حَامِيَـــةٌ﴾ په کلمه کې تنوین راغلی اظهار کیږي، ځکه له تنوین څخه وروسته د (ح) تـــوری راغلی دی چې د اظهار له شپږو تورو څخه دی.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**درى اويايم لوست**

**سرليک: د تکاثر د سورت د ۱ – ۳ آيتونو حفظ**

**مخ:۱۳۳**

**وخت: يو درسي ساعت ۴۵ دقيقې**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- پوه شي که چېرته د (ر) توری ساکن وي د مخکني توري حکم اخلي.
- د لوست آيتونه صحيح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آيتونو له تلاوت سره مينه وښيي.

**اړين معلومات**

دا چې زده‌کوونکو د لوست آيتونه مخکې حفظ کړي، غوره ده چې زده کوونکي هريو په خپل وار سره د لوست ټاکلي آيتونو ۴–٦ د تکاثر له سورت څخه تلاوت کړي که غلطي شتون لرلو ورته دې اصلاح کړي. د ﴿التَّكَاثُرُ﴾ په کلمه کې د (ر) توری ډک لوستل کيږي، ځکه حرکت يې ضمه دی. د ﴿زُرْتُمُ﴾ په کلمه کې د (ر) توری ډک لوستل کيږي. ځکه مخکې حرکت يې ضمه دی. د ﴿الْمَقَابِرَ﴾ په کلمه کې سره له دې چې حرکت يې فتحه دی، د وقف د حکم په اعتبار سره په دغه سورت کې د مخکيني حرکت حکم اخلي چې هغه کسره ده، باريک لوستل کيږي.

**د تدريس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور...

**څلور اویایم لوست**

## سرلیک: د همزه سورت د ۱–۳ آیتونو حفظ

**مخ:۱۳۴**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکی باید:**

- د (ح) توری له خپل مخرج څخه دقیق ادا کړای شي.
- د لوست آیتونه صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیتونو له تلاوت سره مینه وښیي.

**اړین معلومات**

دا چې زده‌کوونکو د لوست آیتونه مخکې حفظ کړي. غوره ده چې زده کوونکي په خپل وار سره د لوست ټاکلي آیتونه ۴ – ٦ د تکاثر له سورت څخه تلاوت کړي که غلطي شتون لرلو ورته دې اصلاح کړي.

- د (ع) د توري مخرج د حلق منځ دی د تلفظ په وخت کې پاملرنه وشي چې له خپل مخرج څخه دقیق ادا شي، مخرج یې د حلق منځ دی.
- د ﴿الْجَحِيمَ﴾ په کلمه کې دې کوښښ وشي چې د (ح) توري د تلفظ په وخت کې په (هـ) بدل نشي په دغه کلمه کې آیت د وقف په اعتبار سره عارض سکون مد دی چې په درې ډوله جواز لري او منځ ته راځي:
  ۱. طول: د شپږو حرکتونو په اندازه.
  ۲. وسط: د څلورو حرکتونو په اندازه.
  ۳. قصر: د دوه حرکتونو په اندازه.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**پنځه اویایم لوست**

## سرلیک: د تکاثر سورت د ۷–۸ آیتونو حفظ.

**مخ:۱۳۵**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- حلقي توري معرفي کړای شي.
- د لوست آیتونه صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیتونو له تلاوت سره مینه وښیي.

**اړین معلومات**

دا چې زده‌کوونکو د لوست آیتونه له مخکې حفظ کړي غوره ده چې زده کوونکي په خپل وار سره ټـــاکلي آیتونه ۷–۸ د تکاثر له سورت څخه تلاوت کړي که غلطي شتون لرلو ورته دې اصلاح کړي.

- په ﴿ثُمَّ﴾ کې د (م) په توری کې ادغام کیږي.
- په﴿لَتَرَوُنَّهَا﴾ او ﴿لَتُسْأَلُنَّ﴾ په کلمو کې نون مشدد دی دلته هم ادغام کیږي.
- د ﴿يَوْمَئِذٍ عَنِ النَّعِيمِ﴾ په کلمو کې اظهار کیږي، ځکه له تنوین څخه وروسته د (ع) توری راغلی دی او د (ع) توری د اظهار له تورو څخه یو توری دی.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**شپږاويايم لوست**

## سرليک: د همزه د سورت د ۱–۳ آيتونو حفظ

**مخ:۱۳٦**

**وخت: يو درسي ساعت ۴۵ دقيقې**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- پوه شي چې ادغام پرته له غنې دوه توري (ل، ر) لري.
- د لوست آيتونه صحيح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آيتونو له تلاوت سره مينه وښيي.

**اړين معلومات**

داچې زده‌کوونکو د لوست آيتونه په حفظ سره له مخکې ياد کړي، غوره ده چې زده کوونکي هر يو په خپل وار سره د لوست ټاکلي آيتونه ۱–۳ د همزه سورت څخه تلاوت کړي که غلطي شتون لرلــو ورتـــه دې اصلاح کړي.

- د ﴿وَيْلٌ لِّكُلِّ ﴾ په کلمه کې ادغام پرته له غنې شتون لري .
- د ﴿هُمَزَةٍ لُّمَزَةٍ﴾ کې ادغام پرته له غنې څخه شته، بايد کوښښ وشي چې زده‌کوونکي ادغام وپېژني.
- د ﴿مَالًا وَعَدَّدَهُ﴾ کې ادغام سره له غنې شتون لري، ځکه له تنوين څخه وروسته د (و) توری راغلی. دغه توری د ادغام با غنه له تورو څخه دی.

**د تدريس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور...

**اووه اویایم لوست**

## سرلیک: د همزه سورت د ۴-۶ آیتونو حفظ

**مخ:۱۳۷**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- پوه شي چې اقلاب په لغت کې د بدلولو په معنی دی.
- د لوست آیتونه صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیتونو له تلاوت سره مینه وښیي.

**اړین معلومات**

دا چې زده‌کوونکو د لوست آیتونه په حفظ سره له مخکې یاد کړي زده کوونکي په خپل وار سره د همــزه سورت ۴-۶ ټاکلي آیتونه تلاوت کړای شي که غلطي شتون لرلو ورته دې اصلاح کړي.

- د ﴿لَيُنبَذَنَّ﴾ په کلمه کې اقلاب دی، ځکه له ساکن نون څخه وروسته د (ب) توری راغلــی چــې اقلاب له تورو څخه یو توری دی.

اقلاب په لغت کې بدلولو ته وایي. د تجوید په اصطلاح کې د نون ساکن او تنوین بدلول دي د (م) په توري باندې. هرچېرې چې له ساکن نون او تنوین څخه وروسته د (ب) توری راشي، اقلاب کیږي.

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادی.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

**اته اویایم لوست**

## سرلیک: د تکاثر سورت ۷–۹ آیتونو حفظ

**مخ:۱۳۸**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې.**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د تلاوت په وخت کې د (ط، ت) ترمنځ توپیر وکړای شی.
- د لوست آیتونه صحیح تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیتونو له تلاوت سره مینه وښيي.

**اړین معلومات**

**دا چې زده‌کوونکو د لوست آیتونه مخکې حفظ کړي. غوره ده چې هر یو په خپل وار سره د لوست ټاکلي آیتونه ۷–۹ د (هُمَزَهْ) د سورت څخه تلاوت کړي که ستونزه يې لرله ورته حل يې کړي.**

**د ﴿تَطَّلِعُ﴾ کلمې د تلاوت په وخت کې کوښښ وشي چې د (ت) تـــورى باریـــک او د (ط) تـــورى ډک ولوستل شي، سره له دې چې دغه دواړه توري یوله بل سره شریک مخرج لري، البته د صفت په لحاظ یو له بل سره توپیر لري.**

**د ﴿عَلَيْهِم مُّؤْصَدَةٌ﴾ کې مثلین ادغام شتون لري.**

**د ﴿عَمَدٍ مُّمَدَّدَةٍ﴾ کې ادغام سره له غنې شتون لري.**

**د تدریس لارې:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

## د وقف پېژندل او علامې يې

**د وقف پېژندنه:** وقف په لغت کې ودريدلو ته وايي.
**د تجويد په اصطلاح کې:** قطع کول د اواز دي د قرأت په وخت کې د کلمې په وروستي توري باندې.
**د وقف ډولونه:** وقف د تلاوت کوونکي په اعتبار سره په دوه ډوله دی.

١. اضطراري وقف
٢. **اختياري وقف**

**لومړی اضطراري وقف: هغه وقف دی چې د قاري له غوښتنې او ارادې پرته د عذر، سالنډي، ټوخي، پرنجي هيرې، ژړا په وجه رامنځته کيږي.**

**دويم اختياري وقف: له هغه وقف څخه عبارت دی چې په خپله غوښتنه او ارادې سره په داسې حال کې چې معنا او د جملو ربط ته کتلو سره د وقف ځای غوره کوي او هلته وقف کوي.**

**د اختياري وقف ډولونه**

اختياري وقف د ځای په اعتبار سره په څلور ډوله دی.

١. **تام وقف**
٢. **کافي وقف**
٣. **حسن وقف**
٤. **قبيح وقف**

١- **تام وقف: له هغه وقف څخه عبارت دی چې د وقف په ځای کې د دوه عبارتونو تر منځ هيڅ ډول لفظي او معنوي تړاو شتون ونلري.**

٢- **کافي وقف: له هغه وقف څخه عبارت دی چې د وقف په ځای کې د دوو عبارتونو ترمنځ لفظي تعلق شتون ونه لري، اما معنوي تعلق موجود وي.**

٣- **حسن وقف: له هغه وقف څخه عبارت دی چې د وقف په محل کې لومړی عبارت تام وي او دوهم عبارت ناقص (ناتمام)، د تکميل لپاره لومړي عبارت ته ضرورت لري. د دغه وقف حکم په لومړي عبارت باندې وقف جايز دی، ځکه فايده تامه وي. په دويم عبارت باندې د نيمگړتيا له وجې جايز نه دی. قاري ته په کار دي چې له مناسبې کلمې بيا شروع وکړي او دوه عبارتونه يو له بل سره وصل کړي.**

٤- **وقف قبيح: په داسې يوه کلمه باندې له وقف کولو څخه عبارت دی چې کلمه په هغه ځای کې پوره شوې نه وي، بلکې لفظاً او معناً تر مابعد پورې تعلق لري، د مثال په توگه په** (لَّقَدْ كَفَرَ الَّذِينَ قَآلُواْ) **باندې وقف او پيل له:** (إِنَّ اللّهَ هُوَ الْمَسِيحُ ابْنُ مَرْيَمَ) **څخه: دوهم مثال په** ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ لاَ تَقْرَبُواْ الصَّلاَةَ﴾ **باندې وقف او پيل له** ﴿وَأَنتُمْ سُكَارَى﴾ **په صلاة باندې وقف سره له دې چې د لفظ له لحاظه ناقص نه دی، خو دا چې د آيت معنا او مراد تغير خوري، لمانځه ته نژديوالي څخه منع والی. له بل طرف څخه دويم عبارت** ﴿وَأَنتُمْ سُكَارَى﴾ **ناقص پاتې شو، ځکه بايد يوازې ونه لوستل شي.**

**د وقف نښې:** د وقف صحيح ځای پېژندل: لومړی، وقف کوونکی بايد په عربي ژبه تسلط او د قرآن کريم د آيتونو له معنا او تفسير سره بلدتيا ولري، اما مسلمانان دغو دواړو ته په اساني سره لاره نشي پيدا کولای، نو ځکه علماوو ورته د وقف ځايونه او رموز معلوم کړل چې تلاوت کوونکي وکولای شي په اساني سره د وقف په ځايونو وپوهيږي. د وقف مشهورې علامې او رموز: م، ط، ج، ز، ص، لا، قلی، صلی، ق دي.

**(م) د لازمي وقف علامه ده:** لازمي وقف هغه وقف دی که چيرې پام ورته ونشي په معنا کې تغير او خلل راځي.

**(ط) د مطلق وقف علامه ده:** مطلق وقف هغه وقف دی چې لفظ او معنا د وقف په ځای کې تام وي. بيا وقف په دغه ځای مناسب او په ځای دی او که چېرې وصل وکړي، په معنا کې کوم تغير نه راځي، اما وقف په (ط) غوره دی.

**(ج) جايز وقف:** له هغه وقف څخه عبارت دی چې وصل او وقف يې دواړه روا دي. اما وقف يې غوره پېژندل شوی دی. د کافي وقف ټول ځايونه پرته له وقف لازم څخه د جايز وقف ځايونه دي.

**(ز)** د دوه جملو د نزديکت لپاره يعنې ماقبل له ما بعد سره دی. البته په وصل يې تاکيد کوي، په دې معنی چې دواړه جملې ګټورې او با مفهومه دي، البته هره يوه يوازې، يوازې هم لوستل کيږي، نو ځکه دغه وقف ته وقف مجوز يا جايز وقف وايي.

**(ص)** وقف مرخص: هغه وقف دی د آيت د اوږدوالي يا د نفس (ساه) د لنډوالي، په وجه قاري ته اجازه ورکوي چې دلته وقف وکړي، د نفس او ساه د تازه کولو په خاطر وصل غوره دی.

**(لا) وقف ممنوع:** دغه د (لا) توري ته د وصل علامه هم وايي. دغه علامه په داسې ځاي کې ده چې وقف کول په داسې ځای کې خلل په معنی او مفهوم دواړو کې پيدا کوي. د قبيح وقف ټول ځايونه په دې وقف کې شامل دي.

**(صلی) د وصل علامه ده:** وصل (الوصل أولى من الوقف) ژباړه: وصل له وقف څخه غوره دی. **(قلی)** د وقف علامه ده (الوقف أولى من الوصل) ژباړه: وقف له وصل څخه غوره دی. **(ق)** علامه د وقف ده. (قيل عليه الوقف) ژباړه: د بعضو په نزد وقف غوره دی.